# حرک

نهم کال پنځمه ګڼه، پرلپسې ۸۱ مه ګڼه، سرطان ۱۳۹۳ل، شعبان المعظم ۱۴۳۵ق، جون ۲۰۱۴م

## په نایجیریا کې نوې پېښې او د لته دلویدیځ شوم پلانونه



## د توکمیزو ستونزو زېږنده ټولټاکنې !!

# استقبال از ماه مبارک رمضان

## د سنګین عملیاتو غلیم له سنګین شکست سره مخ کړ !

## رسنۍ، د امریکا د جګړې زبرځواکه وسله فتحې او لاسته راوړنې



# ځرک

علمي ، فرهنګي ، ټولنيزه اسلامي خپرونه

سرليک




نهم کال دريمه □□ه - پرلپس□ 79 □□ه - سلواغه 1392ل، ربيع الثاني 1435ق- 2014

## امتياز :

دامتيازخاوند : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کميسيون

مسؤل مدير : عبيد تنوير

ليکوال پلاوی : ډاکټر صابر ، حميد ، جميل ميړنی او افضل محمد تراب

## ګڼوت :

| | |
|---|---|
| افغانستان : | 180 افغاني |
| پاکستان : | 240 کلدارې |
| امريکا : | 60 ډالره |
| اروپا : | 60 يورو |
| يوه ګڼه : | 15 افغانۍ |
| | 25 کلدارې |

## يادونه

حتمي نه ده چې په ځرک کې خپرې شوې مقالې دادارې دپاليسي ترجماني وکړي هره ليکنه دليکوال خپل نظر دی.

## پتې :

تخنيکي چارې : عابد مجاهد

کابل : د □رک دفتر

srak_111@yahoo.com

# د سنګین عملیاتو غلیم له سنګین شکست سره مخ کړ !

په دې ورستیو څوورو څوکې د هیواد په جهاد پروره سیمه (هلمند) په شپږو ولسوالیو (سنګین ، مارجه ، کجکي ، موسی کلا ، نادعلي او نوزاد) کې د اسلامي امارت سیمه ییزو جهادي قطعاتو پراخ تهاجمي او تصفیوي عملیات پیل کړل ، چې په نتیجه کې په یادو ولسوالیو کې نه یوازې د ګوډاګي اداري زرګونه پوځیان پرشا تګ او تیښتې ته اړ شول ، په لسګونه تنه یې مړه ټپیان او هم په لویه سطحه پوځي تجهیزات ، وسلې او مهمات د مجاهدینو لاسته ورغلل.

په دغو ولسوالیو کې ورستي عملیات په داسې شرایطو کې پیل شول چې د ګوډاګي اداري د ملي دفاع ، داخله او امنیت ملي وزارتونو په مسلسل ډول د تبلیغات په کاراچولي وو او باداران یې هم ورسره د تائید مهرلګاوه چې ګواکې کابل نور په بشپړ ډول د اتوان او چمتوالی لري چې د مجاهدینو په وړاندې و جنګیږي او له خپلو اهدافو او تاسیساتو څخه په یوازې ځان دفاع وکړي.

خو د هلمند ولایت په شپږو ولسوالیو کې د خیبرروانو چاپیږو عملیاتو په اثبات ورسوله چې د خپلو بادارانو له هراړخیز هوایي او جاسوسي ملاتړ او سره له دې چې تنها په هلمند ولایت کې د اردو ، پولیسو او اربکیانو له لسو زرو ډیر عسکر وجود لري ، خو بیا هم د الله تعالی په لوی فضل او د ولس په مستقیمه همکاری و نشو کړای چې د څو سوو تنو مجاهدینو په مقابل کې ودریږي او د خپلو تاسیساتو ، امنیتي پوستو او جنګي کرښو څخه دفاع وکړي ، بلکې د مجاهدینو له رومبنیو ګوزارونو سره یې هر څه ځای پرځای پریښوول او پراخې ساحې یې تخلیه کړې !

ګوډاګي اداري چې د هلمند په لایت کې لوی او تاریخي شکست ولید نو د معمول مطابق یې بیا هماغه زړه نغاره وډنګوله چې له طالبانو سره په ورستۍ جګړه او تعرضي عملیاتو کې د کوم ګاونډي هیواد مرسته شریکه ده !

خو اوس هر څوک په دغو نغارو او منفي تبلیغاتو پوه دي او پوهیږي چې کله اشغالګر او یاددوی لاسپوځي درنه ماتې او غابن ماتوونکی څواب ووینې ، نو پرته لدې چې په خپل شکست او رسوایي اعتراف وکړي او د ماتې عوامل خپله بې همتي او باطل صف وبولي ، نور و سو ولید لو پلماو او تورونو ته چې له تیرو ۱۴ کلونو راهسې یې پرې په کراتو او مراتو شخوند و هلی پناه وروړي او د عام ولس د اذهانو د بدلولو هڅه کوي.

د کابل اداره او باداران یې باید ځان په دې خبره پوه کړي چې د انتخاباتي ډراماو او دوکو په ترسره کولو به هیڅکله افغان مجاهد ولس د خپلو دیني او ملي ارزښتونو تمسخر او سپکاوي ته اجازه ورنکړي ، ځکه د دغو ټاکنو ترشا او په همدې بنه کې د امریکا او غرب ستر شیطاني او افغان دښمنه دسیسي پټې او راروانې دي او په سلو کې لس فیصده هم د افغانانو د خیر او فلاح تضمین او ډاډ پکې نشته ، نو اسلامي امارت د اشغالګرو د دغه ډول حربو د ټکولو او له اسلامي ارزښتونو څخه د دفاع په نیت خپله دیني او ملي دنده بولي چې د هلمند د سنګین د عملیاتو په څیر د هیواد په هره سیمه او نقطه کې پراخ او پریکنده تهاجمي او سنګین عملیات پیل کړي او د استعمار پټې او ښکاره حربې شنډې او د غلامانو خیالي ماڼۍ یې وردړې وړې وګرځوي ، انشاالله تعالی

# استقبال ازماه مبارک رمضان

منقاد

ماه رمضان در میان مسلمانان از احترام اهمیت وجایگاه ویژه‌ای برخوردار و ماه سلوک روحی آنان است ومؤمنان با استقبال ومقدمه سازی و فراهم کردن زمینه‌های معنوی در ماه های رجب و شعبان هر سال خود را برای ورود به این ماه شریف و پربرکت آماده می‌کنند، و با حلول این ماه با شور و اشتیاق ودادن انعام وافطاری به نیازمندان، شب‌زنده داری و عبادت، تلاوت قرآن، دعا، استغفار، دادن صدقه، روزه‌داری و ... روح و جان خود را از سرچشمه فیض الهی سیراب می‌کنند.

ماهی که درهای آسمان در شب اول آن گشوده می شود وتا آخرین شب این ماه بسته نمی شود.

ماهی که در فضای ملکوتی آن تمام گناهان ولغزشها وکوتاهیهایی که در طول سال گذشته از انسان سرزده بخشوده می‌شود. به فرموده رسول الله صلی الله علیه و سلم رمضان تا رمضان کفاره و بخشش گناهان در میان است، چنانچه از گناهان بزرگ و کبیره دوری شود!

ماهی که نزد خدا افضل از سایر ماه ها است روزهای آن بهترین روزها، شبهای آن با فضیلت‌ترین شبها و ساعتهای آن بهترین ساعتها است.

ماهی که چهره گیتی در مقابل دیدگان خلایق بکلی عوض می‌شود. جهان و جهانیان پوستینی نو به تن نموده، زندگی نوینی را آغاز می‌کنند.

ماه رمضان ماه خداوند، ماه نزول قرآن و از شریف‌ترین ماه های سال است. در این ماه درهای آسمان و بهشت گشوده و درهای جهنم بسته می‌شود، و عبادت در یکی از شب‌های آن (شب قدر) بهتر از عبادت هزار ماه است .

در ماه رمضان همه قوانین و ترازوهای عدالت الهی برچیده شده در جایش اقیانوسهای بی ساحل رحمت و بخشایش و سخاوت نصب می گردد. خداوند عالم به فرشتگان مسئول ثبت و شمارش و تعیین اجر و پاداش نیکوییهای بندگان دستور می‌دهد: مگر روزه!.. روزه از من است.. و من شخصا اجر و پاداشش را می‌دهم!..

عجب شرف و مکانتی است روزه را!... وعجب سعادتی روزه دار را!..

ماهی که شما به مهمانی خدا دعوت شده اید و درآن ماه از اهل کرامت «خدا» قرار گرفته اید نفسهای شما درآن ماه تسبیح است و خوابتان درآن عبادت و عملتان در آن مقبول و دعایتان در آن مستجاب است پس بخواهید از خداوند پروردگارتان با نیتهای راست و دلهای پاک که شما را به روزه در آن ماه و تلاوت کتاب خودش موفق فرماید زیرا بدبخت کسی است که در این ماه بزرگ از آمرزش خدای نومید محروم شود به گرسنگی و تشنگی خود، تان در این ماه

گرسنگی و تشنگی روز قیامت را بیاد آورید و بر فقرای خویش و بینوایان خویش تصدق نمائید و در آن ماه بزرگان تان را توقیر و احترام کنید به کوچکتران رحم نمائید و ارحام خود را صله کنید و زبانهایتان را نگاهدارید و چشمها را از آنچه نگاه به آن حلال نیست بپوشید و گوشهای تان را ازآنچه شنیدن آن ناروا ست ببندید و بر یتیمان مردم ترحم و مهربانی نمائید تا بر یتیمان شما ترحم شود و از گناهان خود به سوی خدا بازگشت نمائید و دستهایتان را در هنگام نمازهایتان به دعا بردارید زیرا وقت نماز افضل ساعاتیست که خدای عز و جل به بندگانش به نظر رحمت می نگرد و چون چیزی بخواهند و با او مناجات کنند جوابشان را میدهد و چون ندا کنند لبیک میفرماید و دعایشان را مستجاب می نماید

کسی که روزه می گیرد، روزه‌اش را خداوند از آن خود می نامد. و خودشان بکرم و سخاء و جودشان مقدار اجر و پاداش آنرا بر عهده می گیرند. حال خودت بنگر؛ آیا بخشایش پادشاه جهان و جهانیان قابل تصور است؟!

پیامبر حق و رسول هدایت و شیفته دیدار پروردگار از ذات پاک یکتا طول عمری می‌خواهد تا لطافت و جمال وجلال رمضان را به آغوش کشد، و در فضای ملکوتی رمضان بیش از پیش به خدایش نزدیک، و در نزد او عزیزتر شود.

رمضان می‌آید تا ما را آلایش دهد و از پستیها و زشتیهای اخلاقی و عادات زننده، و رفتار و گفتار سوء پاک ساخته بسوی پرهیزکاری و تقوا سوق دهد.

شایسته عاقلان است که از همین امروز خود را برای رسیدن رمضان آماده سازند. آمادگی رمضان در انباشت اسباب خورد و نوش نیست، رمضان بر خلاف آنچه بسیاری از مردمان درک نمی‌کنند ماه استراحت دستگاه گوارش است. ماهی که با تنظیم سیستم گوارشی روح و روان انسان را تعالی می‌بخشد.

در مدرسه رمضان مؤمن چگونگی شکر نعمت و سپاس پروردگار بر فضل و کرمش را می‌آموزد. در مکتب رمضان مؤمن سعی می‌کند از صفتهای بی‌منتهای کمال الهی بویی ببرد. سخاوت و گذشت و ایثار و شفقت بر زیر دستان می‌آموزد. معنا و مفهوم بندگی را دریافته از عبادت الهی لذت می‌برد. صفتهای فرعونی گری و خودخواهی، و نفس پرستی و خود ستایی در او ضعیف می گردند.

و او خود را برای ساختار جدید و انسانی بکلی تغییر یافته آماده می‌سازد. تا با نیروی برگرفته از رمضان سالی دیگر را با روحیه خوشبختی، و تلاش و همتی سازنده شروع کند.

ماه مبارک رمضان در حقیقت یکی از نعمات بزرگ پروردگار بوده که به منظور شستشوی وجود مان از گناهان به ما اعطاء گردیده است، لذا به هر خواهر و برادر با درک ماست تا از این لحظات گرانبها و از این شانس طلایی به منظور محو نمودن اشتباهات، خطاها وگناهانی که از ما سرزده است استفاده نمایند، و با بازگشت این ماه مبارک و پر فیض همزمان با آنکه از فوائد طبی آن برخوردار می شویم، از فواید دنیوی و اخروی آن نیز مستفید گردیم.

خوشا به حال آن خواهر و برادرکه هر لحظه این ماه پر فیض و پر برکت را غنیمت شمرده و از آن در جهت مغفرت و بخشش گناهانشان استفاده نمایند وحسرت و افسوس به حال آن خواهر و برادری که با فرا رسیدن این ماه مبارک هنوزهم از خواب غفلت بیدار نگردیده و با بی‌تفاوتی و بدون احساس مسئولیت، به گناهان گذشته شان ادامه داده و از این شانس طلایی مستفید نمی گردند.

رمضان در راه است و ما در شوق دیدار آن لحظه شمار..

# دتوکمیزو ستونزو زیږنده ټولټاکنې !!

خپلواک

انتخابات تیرشول خود موسمي تبې په خیریې لاجراثیم زموږد خلګو په وجود کې پاتي دي؛ ژبې لاهم هغسي دیوبل په وړاندي تیرې او اوږدې دي؛ کنځلې، پیغورونه، دیوبل سیمي اوژبې ته سپکې سپوري ویل اولیکل روان دي؛ دامریکا، برتانیې اوناټو استازو غوږنیولی اودیوې ستري لوبې او ورستۍ حربې دبري انتظارباسي !

یوه پیړۍ وړاندي لاانګریزانو داسلامي هیوادونو دوهلولپاره دتقسیم فارمول غوره کړې وه اودهمدې فارمولې له لاري یې عربان اوترکان پخپلو کې سره واچول اودمسلمانانو دوحدت ورستی سمبول عثماني خلافت یې له مینځه یوړ، چې بیایې عربان هم په خپلو کې په یودرجن وړوهیوادونو وویشل.

افغانستان چې دوه ځله یې انګلیسي استعمارته ماتې ورکړې اوهمیشه دانګریزانو دسمه ایزو ګټو په وړاندي خنډ پاتي شوی دی، نن هم دلویدیځونیواکګرودسترګو ازغی دی اوددې هیواد وحدت ته یې ارادې سمې ندي.

په همدې موخه له تیرې څه باندې یوې لسیزې راهیسې په هیواد کې ژبني او سمتي اختلافاتو ته لمن وهل کیږي، ددواړو غاړو متعصبو څېروته امکانات ورکول کیږي او تبلیغاتي اسانتیاوې ورته برابریږي.

## دانتخاباتو مشروعیت او اصلیت:

دامریکایي تیري له اولې ورځې زموږ په هیواد کې هرهغه څوک چې ددغه اشغال سره یې فکري یاعملي مخالفت کاوه، ددښمن په نامه ونومول شول، چې بیایې په وړاندي هرډول غېرګون دډیموکراسي ترشعارلاندي مشروع عمل وګڼل شو، له همدې امله هرهغه څوک چې له امریکایي اشغال نه دهیواد دخپلواکي فکرېې لاره له صحنې وایستل شول.

دلویدیځواستخباراتي اوسفارتي کړیو په هڅونه په هیواد کې داسې میډیا رامینځ ته شوه چې ریموټ کنترول یې له اولې ورځې دلویدیځواستخباراتو په لاس کې و، چې د۹۵ فیصده مسلمان ملت دعقایدو، عنعناتو اوتاریخ خلاف نشرات او تبلیغات یې پیل کړل، دیرغلګرو وحشت، ظلم اوناودې یې پټولې اوددې یرغل پرمخالفت کوونکو یې دپردي پالو، غلامانو اودې ته ورته ناوړه تورونه پوري کول.

بل پلو هرهغه څوک چې ددغه سپین سترګي یرغل حمایت اومرسته یې نه ده کړې، له لومړۍ ورځې دسیاسي عمل داجرا حق ندی ورکول شوی، دلته دموجودې لاس پوڅې میډیا له لارې یوازې هغې څیرې ځلول کیږي او تبلیغاتي کمپاین ورته کیږي چې دلویدیځ استعمار چوپړیې وهلی دی، ډیری داسې کسان چې دخارجي قوتونو دشتون مخالفت

کوي او يا يې د دايمي اډو د مخالفت روحيه لرله د کانديداتورۍ له حقه محروم ګرځول شوي دي.

د داخل انتخاباتو لپاره چې څومره کانديدان وو، نوټولو د اعهد کړی و، چې د بريالتوب په صورت کې به د امريکا سره د دايمي غلامي تړون (استراتيژيک تړون) امضا کوي، چې په حقيقت کې د اعهد د کانديداتورۍ يو شرط و، ورستيو مخکښو دوا ړو کانديدانو تر دوهم ځل ټاکنو وړاندې بار بار دا خبره تکرار وله چې د بري په صورت کې به يې لومړی کار د امنيتي سند امضا کول وي، دا ددې لپاره چې دوا ړو خپل بري يوازې د امريکا په رضايت کې ليده، نه د خلکو په رايو کې.

په مخکښو کانديدانو کې داسې څوک نه و، چې له تيرو ديارلسو کالو دې پدغه فاسد رژيم کې په دندو نه وي پاتې شوي، او سني دوا ړه سيالان د امريکا يې يرغل له لومړۍ ورځې د دغه يرغل په چوپړ کې وو، په لومړي لاسپوڅي رژيم کې يې يو خارجه او بل د ماليې وزيرو.

د کوم هيواد اساسي قانون، اجرايه قوه او واکمنان چې د پردو په لاس رامينځ ته شوي وي، هلته د ټاکنو د خپلواکي او مشروعيت تصور هم نشي کيدی، البته ولس د خپلې بدې ورځې نه ځک ته هم لاس اچوي، چې ګنې لږ به يې ورځ ښه شي.

له بلې خوا د ميډيا له لارې د قوم او سيمي په جزباتو خلک په ټاکنو کې ګډون ته هڅول کيږي، ترڅو خلک ديوه او بل له ويرې انتخاباتو ته ارزښت ورکړي.

افغانستان چې دا وخت په رسمي توګه د پرديو په ولکه کې دی او هيڅ خپلواک بنسټ نلري، ديوه بې وارثه هيواد په توګه يو جريان هم ورکې بې لوري او خپلواک ندی، دلته د فساد او درغليو په وړاندې هيڅ يوه داسې منصفه او خواکمنه اداره نشته چې څوک دې تر لاسه را ونيسي، موږ وليدل چې د جعلي رايو مستندې ويډيو ګانې په انترنيت خپرې شوې، خو نه څوک چا ملامت کړای شول او نه څوک پرې وشرميدل.

د افغانستان اتيا فيصده ابادي کليوالي سيمي دي، په دوا ړو پړاوونو کې ديو د رجن ولايتونو په کليوالو سيمو حتی د ولسواليو په مرکزونو کې رايې ونه لويدې، خو کانديدان او لاسپوڅې ميډيا دوا ړه پرې تر اوسه خاموشه دي او د دغه ولايتونو د ټولو سيمو په نامه رايې هم شميرل کيږي.

## دسمت اوژبې زهر جن شعار :

د سيمت اوژبې شعار تر ټولو زهرجنه حربه وه، چې داخل وکارول شوه، دا حربه د افغانستان د وحدت د د ښمنانو لپاره يو ښه فرصت دی، ترڅو افغانستان په عملي توګه تو کميز بحران ته ورټيل وهي.



پداسې حال کې چې دوا ړه مخکښ کانديدان نه د هيواد او نه د هيواد د کوم توکم استازيتوب کولای شي، بلکې د پرديو په فرمايش د پرديو اهدافو لپاره راميدان ته کړای شوي دي.

د پرديو فرمايشي څيرې هيڅکله د پرديو ګټو په وړاندې د خپلو خلکو او خپل هيواد ملی او بين المللي ګټو ته وفادارنه وي، د افغانستان سره مينه ددې هيواد خپلواکي ده، خودغه دوا ړه ښاغلي د امريکا د دايمي شتون لپاره د سند امضا کولو ته ليواله دي.

ترکی، امین او نجیب ترټولو زیات پښتانه وټکول، بې کوره یې کړل او د پلیګون په ځیر وحشی ډیرانونه یې پرې ډک کړل، داکترنجیب د شاهي کورنۍ (چې پښتانه تو کمه وو ) بندیانې ښځینه هم په عزت کې پرې نښودې، بلکې پخپله به زندان ته ورته (د جنرال عمرزي د کتاب: شبهای کابل په حواله)

خونن بیا زاړه کمونستان او دهغوی زامن په ډېره سپین سترګي د پښتنو د حقوقو نارې وهي، غوارې اوس پرځان دغه ځرمن واغوندي او خپله زړه وطن فروشي او افغان کشي پټه کړي.

دنجیب دواکمنې پرمهال چې موږ ماشومان وو، زما په یاد دي دګیلم جم ملیشو له ویرې مو کورونه پرایښي وو، نورو سیموته موهجرت کړی و، دغه ملیشو دخلګو کورونه چور کړل او ځاروي یې هم په ګولیو ویشتلي و او چې څوک په کورونو کې پاتې وو، دهغوی شیدې رودونکي ماشومان یې هم په ځانګوګانو کې ویشتلي وو، نجیب پرهمدغو ملیشو زیاته اتکا کوله او اکثره به یې زموږ سیمو ته دعملیاتو لپاره رالیږل، روسي جنرال الکساندر (مایوروف) په خپلو خاطرو کې لیکلي: څوتنو روسي عسکرو دننګرهار په ولایت کې په څو پیغلو انجونو جنسي تیری وکړ، کرملین دد غو عسکرو د مجازات غوښتنه وکړه، خو نجیب یې دفاع کوله چې دا یوه عادی پیښه ده، چاچې د پښتنو دعفت پروا نلرله هغه هم د ځینو په اند د پښتنو خواخوږی دی، دا ډول ځیرې که په هر دور کې تیرې شوې دي، نه یې د هیوادپر سرننګ کړی او نه هم د کوم توکم.

له بده مرغه داخل یو شمیر هغه خلګ چې ډیرې یې د اسلامی دعوت او جهاد په شعارونو کې سپینې شوې دي، دد ښمن ددې حربې ښکارشول او دتوکمیز وجزباتو پربنسټ ددغو بې هویته او پردو ایجنټانو ترشا ودریدل !!!

## دطالبانو ثابت دریځ:

طالبانو دامریکایي یرغل له لومړۍ ورځې د اشغال ترسیوري لاندې هرعمل نامشروع بللی او د سبوتاژکولو هڅه یې کړې، چې پدې کې ټولټاکنې هم دي، البته په کومو سیموکې چې طالبانو زیات قوت لاره، هلته یې زیات زور ښکاره کړی او په کومو سیموکې چې یې کم نفوذ لاره، هلته یې دهم هغه نفوذ په کچه کوشش کړی، پدې اړه طالبان له لومړۍ ورځې پخپل دریځ ثابت پاتې شوي دي، که طالبانو کوم خاص کاندید ته پرسمتي اوژبني معیار د مرستې لاس ورکړی وای او یایې په همدې جزبه اویا دځیني وعدو په بدله کې دهغه له مخالفته لاس اخیستی وای نو دا به دطالبانو دفکري جوړښت او مضبوط دریځ لپاره سخته ضربه وای، بلکې طالبانو به دلنډمهاله اوفرضي ګټولپاره خپل تلپاتي شعارته شا اړولي وای، او دخپلې دعوې خلاف به یې یو غیرمشروع جریان په رسمیت پیژندلی وای.

طالبان پدې پوهیږي چې که یوکاندید یې پروراندي دجګړې پالیسي لري، نوبل یې په وړاندي دسولې په نامه دد اسي جریان په لټه کې دی، چې ترجګړې ورته خطرناک دی، چې هغه لدې تحریکه دافرادو او اشخاصو دبیلولو پالیسي ده.

سی آی ای پوره هڅه وکړه چې طالبان پدې جریان کې ملوث کړي، ترڅو له خپله ثابت دریځه واړول شي، خو طالبانو له ځراکت نه کار واخیست!

داسلامي حزب مشر ښاغلی حکمتیار دهمدې دسیسې ښکارشو، چې یوځل یې دانتخاباتو ټول جریان نامشروع او پردو ترسیورلاندې ګانه، خو بیایې همدغه جریان په رسمیت وپیژاند او خپل کاندید یې ونوماوه!

# دمصر او سني انتخابات او داسلامي نړۍ په اړه دلويديځ ارادې

حسن مومند

دفوځي طاقت په زورپه مصر کې دولسمشريزو انتخاباتو په نوم په ترسره شوې نوې لوبې کې فوځي واکمن السيسي خپل ځان بريالی اعلان اودمصر دمنتخب ولسمشر په صفت يې لوړه وکړه ؛ داسرائيلو دولسمشر اولومړي وزير په شمول ورته دنړۍ ګڼو مشرانو دمبارکۍ پيغامونه راوليږل اودځني اسلامي هېوادونومشرانو خودا ورځ دمصرلپاره تاريخي ورځ وګڼله .

په لومړۍ ورځ چې څوک د رايو اچولولپاره راونه وتل نوخبره دوهمې ورځې ته ولاړه اوچې په دوهمې ورځ هم څوک درايو اچونو مرکزونو رانغلل نوخبره دريمې ورځې ته ولاړه خوپه درې واړو ورځو کې هم درايو اچونکو شمېره له ۱۲ سلنې وانوړېده ؛ ياني دمصر ۸۸ سلنې دتش په نامه دې انتخاباتو سره عملاً پرېکوڼ وښود خو بيا هم نړۍ دا انتخابات قانوني اوديموکراتيک وګڼل اودکودتايي نظام ترچترلاندې دزرونوبې ګناه مصريانوقاتل ، فوځي مشرالسيسي چې په حقيقت کې يواځنی کانديد و دانتخاباتو قانوني ګټونکی يې وګڼلو .

پوښتنه داده چې دنړيوالو ټولو قوانينودمخالفت سره سره هم دبشريت ددې ستر دښمن السيسي په ناقانونه کړنو اوظلمونو نړۍ اوخصوصاً امريکا اوټول لويديځ ولې سترګې پټې کړيدي ؟ ولې يې قانوني ولسمشر بولي ؟ اودبشريت سره دادومره ستره جفا ولې کيږي ؟ ددې پوښتنې جواب ايله هغه مهال موندلی شوچې کله داسلامي نړۍ په اړه دټول لويديځ اوپه ځانګړي ډول دامريکا دارادونه ځانونه خبر کړو.

نولويديځ چې داوسېدونکوقاطع اکثريت يې دتحريف شوي مسيحيت دی داسلام او مسلمانانو سره يې دښمني لا له هغې زمانې نه پيل شوی چې کله داسلام پيغام دنړۍ ترزياترو برخو ور ورسېد او دمسلمانانو دفتوحاتو لمن ترمسيحي نړۍ خپره شوه؛ داسلام او مسلمانانو سره ددې دښمنۍ په ټولو لويديځ هيڅکله هم ندی توانېدلی ؛دښمني يې خامخا ښکاره شوې خو ظهور يې کله دوحشت نه ډکو ګرمو جنګونو په صورت کې او کله دنفاق نه ډکو پټو توطئو او شومو پلانونو په شکل کې؛ ددې لړۍ تسلسل دپيل نه ترننه ندی پرې شوی خو اوس د ۲۱ مې پيړۍ په پيل کې چې دامريکا په مشرۍ کې ټول لويديځ داسلام او مسلمانانو له منځه وړلو لپاره سره رايو ځای شو نو دا چې دا د دوئ دماديات‌و ، حربي وسلو او عسکري وسايلو دعروج زمانه وه نو پدې تمه يې پرافغانستان نظامي يرغل وکړ چې دا به پيل وي او ورپسې به يو په بل پسې ډېر ژر دمسلمانانو هيوادونه قبضه کړي؛ دخپل پلان سره سم يې دافغانستان نه پس ډېر ژر پرعراق هم حمله وکړه خو چې پدې دواړو هيوادونو کې بدبد رانښکېل شول؛ دشرمونکې ماتې سره مخامخ شول ؛هيلې يې دخاورو سره خاورې شوې او يقين ته يې پرېوته چې په نظامي ډګر کې دمسلمانومجاهدينو مقابله ناشوني ده نو ټوله توجو يې داسلامي نړۍ دکمزورې کولو لور ته واړوله او ښه په سپين سترګۍ يې مسلمانانو ته دهراړخيزوتاوانونو رسولو په موخه ټول شوم پلانونه په کار واچول .

په کومو هيوادونو کې چې دمسلمانانو اقليت دی پسې يې دهغه هيواد داکثريت دراپاڅولو کوښښونه وکړل ترڅو پکې دمسلمانانو قتل عام وشي لکه په برما او ورپسې په وسطی افريقا کې چې همداسې وشول؛ په کومو هيوادونو کې چې شيعه ګان او سنيان يا مسلمانان او مسيحيان دنفوس برابرې برخې وي دهغه هيوادونو د حتمې تجزيې ډېرې زياتې هڅې کوي لکه دسوډان دجنوبي برخو مسيحيان يې چې دمرکزي دولت خلاف بغاوت ته وهڅول ؛ د مسلمانانو او مسيحيانو ترمنځ اوږده جنګونه رامنځته شول چې پکې له دواړو لورو ګڼ انسانان له منځه ولاړل؛ لويديځ ددې هرڅه پړه پر مرکزي دولت وروا‌چوله او دخپلو رسنيو له لارې يې ډېر زيات تبليغات وکړل چې دمسيحيانو په وژنو کې مرکزي دولت لاس لري ؛په همدې پلمه دملګرو ملتونو په نوم لاسپوڅې ادارې

مداخله وکړه؛ ولسمشر عمرالبشیر یې په جنوبي سوډان کې ټولپوښتنې ته اړ کړ او چې ټولپوښتنه رامنځته شوه نو نتائج هغسې اعلان شول څرنګه چې لویدیځ غوښتل؛ وویل شول چې دجنوبي سوډان قاطع اکثریت جدا هیواد غواړي؛ بس دنتائجو داعلان نه سمدستي پس دټولې نړۍ په رسنیو کې جنوبي سوډان دجدا هیواد په صفت یاد او دملګرو ملتونو ادارې دمستقل هیواد په صفت په رسمیت وپېژندلو.

لویدیځ اوس په نایجیریا کې هم همدا دسوډان پلان تطبیقول غواړي؛ نایجیریا دمساحت په لحاظ دافریقا دوهم او دنفوس په لحاظ ترټولو ستر هیواد دی ؛ مسلمانان یې دنفوس ۵۵ سلنه او مسیحیان یې ۴۵ سلنه تشکیلوي ؛دهېواد ولسمشربايد مسلمان وای خو دیو شمېر داخلي لاملونو او خارجي فشارونو له امله دمسلمانانو ددې هیواد اوسنی ولسمشر مسلمان نه بلکې مسیحي دی؛ دهمدې مسیحي ولسمشر په مشرۍ کې دنایجیریا دولت ړومبی دمسلمانانو ،،بوکوحرام،، نومې یو فعال تنظیم دتروریست تنظیم په صفت اعلان کړ او بیا ورسره دتړاو په پلمه دمسلمانانو په سونو مدرسې او مکتبونه ړنګ شول او په مختلفو وختونو کې دفوځ او پولیسو له لورې دنوموړي تنظیم پرضد دعملیاتو په ترځ کې په زرونو مسلمانان زندانیان یا شهیدان شول؛ ددولت له لورې دمسلمانانو پرضد دهمدې ظلمونو او بیا ددې ظلمونو په مقابل کې دمسلمانانو دغبرګون ښکاره کولو له لارې لویدیځ دمسلمانانو اومسیحیانو ترمنځ دمنافرت او ددښمنۍ اور ته لمن ووهله چې په نتیجه کې مسیحیان ورو ورو جنوبي او مسلمانان شمالي نایجیریا ته په ورټولېدو شول؛ کله چې ټول مسیحیان جنوبي نایجیریا ته ورټول او دمستقل هیواد غوښتنه وکړي نو دسوډان په څېر به دلته هم دمستقل هیواد درامنځته کېدو لپاره ټول مراحل طی شي او یو داسي مسیحي دولت به رامنځته شي چې ټوله لویدیځه نړۍ به یې ترشا ولاړه وي او دشمالي نایجیریا دمسلمانانو ددولت په پرتله به په هرلحاظ ډېر ځواکمن وي.

همدا راز په شیعه مېشتو او سني مېشتو سیمو دعراق اوسوریې دتجزیه کولو لپاره هم دامریکا په مشرۍ دلویدیځ دې شیطاني اتحاد خپل ټول وسایل په کار اچولي دي؛ او زموږ په ګران هیواد افغانستان کې یې هم دسمتي اوژبني تعصب زهرجن تخم شیندلی دی ترڅو ددې هیواد نه دتېښتې پرمهال یې دتجزیه کولو او دمستقل هیواد په صفت ورنه دشمال دجدا کولو هڅې وکړي.

دکومو اسلامي هیوادونو نوعیت چې داسې نه وي او په شیعه مېشتو او سني مېشتو یا مسلمان مېشتو او مسیحي مېشتو برخو نه شي ویشل کېدای نو په هغې هیوادونو کې یې سیکولرستان واک ته له رسولونه پس پراسلام خوښو دومره زیاتو ظلمونو ته هڅولي دي چې له امله یې طبعاً دهیواد ټول وګړي په دوه طبقو ویشل کېږي :لبرال او سیکولر طبقه چې نړیوال یې روڼ اندي یا روشنفکران بولي اوبله طبقه اسلام خوښي چې نړۍ یې په بنسټپالو، سخت دریځو او نورو نومونو یادوي؛ لویدیځ دسیکولر طبقې سره مسلسلې مادي مرستې او ورنه سیاسي حمایت کوي؛ مرستې او حمایت یې ښکاره کوي او په ډېرې سپین سترګۍ یې کوي ترڅو اقتدار ته دسیکولر طبقې درسېدلو او لاسپوڅې ادارې درامنځته کېدلو په صورت کې دلویدیځ موخې هم ترسره شي او ددواړو طبقو ترمنځ اختلافات هم دومره جور شي چې دقتل وقتال ترحده ورسېږي او داسلام خوښو ښې ډېرې وینې توی شي لکه دمصر روان حالات دهمدې شاهد دی.

دملي پاڅون په نتیجه کې ددیکتاتور حسني مبارک دراپرځېدونه پس چې اسلام پال ډاکټر محمدالمرسي دمصر دمسلمان او مبارز ولس دقاطع اکثریت په خوښه او دلویدیځ دجمهوري اصولو سره سم دازادو او شفافو انتخاباتو له لارې منتخب ولسمشر شو؛ او په انتخاباتو کې یې دحسني مبارک ددورې وزیر احمد شفیق، دباندنیو چارو وزیر عمروموسی، دنړیوالې اتومي انرژۍ پخوانی مشر محمد البرادعي او احمدبن صباحي ته ماتې ورکړه؛ لویدیځ ګومان کاوه چې ددوئ دمادي مرستو پرته به اسلامپالي څو میاشتې هم دمصر اداره ونشي چلولای ؛لویدیځ فکر کاوه چې واک ته دمرسي درسېدلو نه ۳ یا ۴ میاشتې پس به په مصر کې ستر اقتصادي بحران رامنځته شي چې په پایله کې به ولس دمرسي پرضد راپورته شي؛ دمرسي اداره به ړنګه شي او عبوري اداره به دامریکا او نور لویدیځ ترچتر لاندې په ترسره شویو انتخاباتو کې دمحمدالمرسي په مقابل له ماتې خوړلو تنانو نه هغه څوک بریالی اعلان کړي چې دحسني مبارک نه هم لویدیځ ته زیات وفاداروي او په شتون کې به یې دغرب ټول شوم پلانونه په اسانۍ پوره کېږي خوچې دلویدیځ دتمو خلاف دمحمدالمرسي اداره نه یوازې دا چې ژر ناکامه نه شوه بلکې په یو کال کې په هیواد کې دننه دګڼو مثبتو بدلونونو راوستلو او اسلامي نړۍ ته دمصر دورنېږدې کولو له امله دااداره دمصر ولس ته ډېره محبوبه او په نړۍ کې ترډېره حده نېک نامه شوه نو دامریکا په حکم دمصري سیکولر فوځ مشر جنرال السیسي دمحمدالمرسي اداره دفوځي کودتا په نتیجه کې ړنګه کړه؛ قانوني ولسمشر محمدالمرسي یې کوم نامعلوم ځای کې زنداني کړ او دفوځ ددې ناقانونه او وحشي عمل پرضد دکر کې ښکاره کولو او بېرته محمدالمرسي ته دواک سپارلو دغوښتنې په موخه په راوتلو مسلمانانو چې فوځ او نورو امنیتي ځواکونو هوايي او ځمکنۍ حمله وکړه نو پکې دمېرمنو او کوچنیانو په شمول تر ۴ زره او ۵ سوه پورې

مسلمانان شهیدان د ۱۰ زرو په شاوخوا کې ټپیان او په زرونو زندانیان شول خو بشر پال لویدیځ، ملګري ملتونو یا دبشر دحقوقو په نوم نړیوالو ادارو پدې هر څه سترګې پټې او خوله چوپه کړې وه؛ نه یې دانسانانو دا قتل عام ګناه ګڼله او نه یې دجمهوري نظام ړنګول او دقانوني ولسمشر زنداني کول جرم بللو؛ ځکه چې دا هر څه ددوئ په حکم او ددوئ په خوښه کېدل نو که السیسي ددې په لس چنده نور ظلمونه او ناقانونه چارې ترسره کړې وای هغه به بیا هم سپین باز وای او پر ضد به یې د کوم کوچني اقدام اړتیا هم نه لېدل کېدای.

که کوم مسلمان جنرال دمسیحي یا سیکولر ولسمشر او دولس دنا مسلمانو وګړو پر ضد دا ډول اقدام کړی وای نو دامریکا، نورې لویدیځې نړۍ او دملګرو ملتونو ادارې غبرګون به څه وای؟ پدې هر څوک پوهېږي.

لویدیځه کفري نړۍ خو طبعي ده چې دالسیسي پدې ټولو وحشتونو خوښه وه خو دافسوس ځای دی چې ددې لپاره چې دمصر دانقلاب اثر خپور نشي دسیمې ځنې عربي هیوادونو نه یوازې دا چې پدې هر څه خوښ وو بلکې دمحمدالمرسي خلاف دالسیسي د کودتا په ستایلو کې یې هم دشرم احساس ونکړ او ددې لپاره چې په مصر کې بې دینه وګړي دمصر دانقلاب پر ضد استعمال شي او دمصر مسلمان ولس چې څه غوښتل هغه ترلاسه نه شي دسیمو ځینو عربي هیوادونو جنرال عبدالفتاح السیسي او دمحمدالمرسي په مقابل کې ماتې خوړلو محمدالبرادعي، احمدشفیق او عمروموسی ته ۵ ملیارده ډالر ورکړي وو؛ دالجزیره تلویزون چې ددې پټې معاملې نه پرده پورته کړه په مخالفو یادو تنانو کې تر یو هم انکار ونشو کړای.

دا پنځه ملیارده ډالر له هغې پرته وو چې امریکا او اسرائیلو له لورې السیسي او خپلو نورو ایجنټانو ته ورکړل شوي وو دامریکا او اسرائیلو له لورې چې کومې پیسې دوئ ته ورکړل شوې وې هغه خوله دې ډېرې زیاتې وې ځکه چې السیسي امریکایي اخبار واشنګټن پوسټ سره په مرکې کې ددې خبرې څرګند اقرار کړی و چې دډاکټر مرسي پر ضد دترسره شویو اقداماتو اصل هڅونکي امریکا او اسرئیل وو؛ دهمدې دواړو هیوادونو په ډاډ مونږ داسرائیلو دموخو دساتلو لپاره دمرسي پر ضد اقدام وکړ،،

ربښتیا هم چې السیسي یوازې او یوازې داسرائیلو دموخو او ګټو دساتنې لپاره راوستل شوی دی چې اسرائیل هم اوس له دې خبرې انکار نه کوي.

دالسیسي د کودتا نه پس داسرائیلو تلویزون یوځل په ،،یومان،، پروګرام کې چې ایالاحسون یې چلونکی دی دعربي نړۍ کارپوه عودبرغرانوت او نظامي کارپوه بارشادوم ول رادعوت کړی وو چې دپروګرام په پیل کې ایالاحسون ددوئ دواړو نه داسې وپوښتل :تاسو ته معلومه ده چې دحسني مبارک دواکمنۍ پرمهال به دمصري فوځ سره زمونږ ددولت له لورې دمصر له ولسه پټې مرستې کېدلې او دا رابطه به دمصر داستخباراتو مشر عمرادیب جوړوله، خواوس دالسیسي سره دامرستې په ښکاره کېږي؛ مونږ او مصر سره ولې دومره نږدې شوی یو لامل یې څه دی؟ بادشادوم په لنډو ټکو ځواب ورکړ او ویې ویل: که دهر اسرائیلي فوځي نه دا پوښتنه وکړې نو ځواب به یې دا وي چې دالسیسي دمرستو مثال نه پیدا کېږي او نوموړی زمونږ اصل اتل یا **hero** دی،،

السیسي چې دملیکه تیتاني نومې مراکشۍ یهودۍ مېرمنې ځوی او ماما یې عوري صباغ په اسرائیلو کې د ښوونې وزیر تېر شوی دډاکټر محمدالمرسي پر ضد کودتا؛ دمظلومه مسلمانانو قتل عام، داخوان المسلمین دمشر په شمول د ۶۸۳ تنانو پر ضد جعلي دوسیې جوړول او ورته دمرګ سزا اعلانول او نور ټول وحشتونه چې دالسیسي دخپل اعتراف له مخې دامریکا او اسرائیلو په ډاډ او داسرائیلو دموخو او اهدافو دساتنې لپاره شوی وي ؛اسرائیل یې خپل اتل بولي دانتخاباتو په بریالیتوب ورته داسرائیلو ولسمشراولومړي وزیر مبارکي وویله نو که دمصر اوسني انتخابات سراسر له درغلیو ډک او سل په سلو کې دجمهوري اصولو خلاف وي بیا به یې هم نړۍ شفاف بولي، السیسي به قانوني او مقبول ولسمشر وي، ټوله نړۍ به یې ترشا ولاړه وي او ترهغې به په مصر مسلط وي تر څو چې یې پر ضد د ۲۰۱۱ په څېر ستر او اوږد ملي پاڅون نه وي ترسره شوی؛ دا چې ظلمونه یې اوج ته رسېدلي او دمصر ولس ته یې اصلي څېره روښانه شوې نو تمه کېږي چې ډېر ژر به یې پر ضد ټول ولس راپاڅېږي او دمصر ولس به ددې دیکتاتور نه هم دتل لپاره نجات ومومي. ان شاءالله

## دعراق دملي امنيت مشاور :

# صدام حسين که څه هم زمونږ دښمن و

# خودمرګ ترورستۍ سلګۍ پکې دبزدلۍ اوډار نښې ونه ليدل شوې

دعـراق دملـي امنيـت مشـاور ( موفـق ربيعـي ) لـه رسنيوسـره پـه ړومبـی مرکـه کـې دعـراق دمخکينـي ولسمشر صـدام حسـين داعـدام دلاملونواوورستيوشيبوپه اړه چې څه تيرشول يولړ رازونه لوڅ کړي .

الربيعي ، وايي په يوه غونډه کې دامريکاولسمشر جورج ډبليوبوش دعراق له ولسمشر ! نورالمالکي څخه وپوښتل چې له صدام حسين سره څه کوي ، مالکي ورتـه فوراً وويـل چې اعدام ؛ بوش ورتـه دتائيد ګوتـه پورته کړه چې همداسې سزاور کړی .

دربيعي په خبره دبوش له موافقت ورسته مونږ دصدام داعدام په لاروچاروپيل وکړ.

دعراق امنيت مشاورچې دغـه خبري يې دفرانسې لـه اژانس سره کـولي زياتـه کـړي : داخبـره سـمه ده چـې صـدام دهغـه پـه انـدظالم اوجنايتکاروو ، خوله نيول کيدو څخه داعدام ترتختې پوري مونږ په هغه کې دتزلزل او بزدلی کوم حرکات اواثارونه ليدل .

هغـه وايي ، ځيني وخت ماتـه دمالکي دولت چاراواکي وايي چې دصـدام دقـوت اوهمـت خبـري ولـي کـوي ، بلکـې کمـزوري او ډارن بايدمعرفي شي ، خو دالربيعي په قول حقيقت بايدپټ نشي اوهيڅکله بـه تـاريخ تـه ناسـمي کرښـي ونـه سـپاري ، نوځکـه وايـم چـې پـه صـدام کـې ترورستی سلګی پوري دډاراوترس نښي ونه ليدل شوي .

صدام حسين دامريکاله اشغال ورسته ، د۲۰۰۳ کال ددسامبرپه ۱۳ نيټـه پـه عـراق کـې ونيـول شـو اود۲۰۰٦ کـال ددسـامبرپه ۳۰ نيټـه دلـوی اخترپه ورځ اعدام کړل شو.

الربيعي په دغه مرکه کې ويلي : کله مې چې صدام حسين دقاضي دفترته راوست په يوه لاس کې يې دقرانکريم نسخه وه ، په داسې حال کې چې قاضي دهغه داعدام ورستی حکم اعلاناوه ، صدام حسين په مکرر ډول مـرګ پـه امريکـا ، مـرګ پـه اسـرايلو ، مـرګ پـه ايـران ،اومـرګ دامريکاپه ګوډاګيانوجذاب اوقهرجن شعارونه ورکړل .

دعـراق دامنيـت پخـواني مشـاوروايي : کلـه مـو چـې صدام داعـدام خوني ته بوته ، داعدام رسی ته وکتل اوتبسم يې وکړ اوماته يې په دقيق انداز وکتل اووي ويل چې دغه کار دمردانګي او نرتوب ندی ، اعدام بـه مـو په بله طريقه کړی وو!!

ربيعي وايي په دغو شيبو کې ځينوخلکو دغه اوازونه پورتـه کـړل ( زنده بادمحمدباقرصدر ...مقتدی مقتـدی ) خوصدام پـه ځـواب کـې ورتـه وويـل دوی دې مړه وي ، دوی دشيطان زامن دوی دامريکاجاسوسان ، لدې ورسته صدام دشهادت کلمي ولوستي اوداعدام مرحله پرې ترسره شوه .

ربيعي وايي په يوځل داعدام رسی کش شوه خو صدام ژوندی پاتي وه ، بيادوهم ځل بل کس رسی کش کړه اوصدام اعدام شو.

نوموړي زياتوي ، کله چې صدام اعدام شو ، دهغـه جسدپه خاصـه امريکايي چورلکه داعدام له ځايه دنورالمالکي ،قصر بغدادته يـووړل شـو ، مالکي دصدام دجسددليدلولپاره امريکايي چورلکي ته راپورتـه شـو، کلـه يې چې دصدام مخ وليد ، نووي ويل ، افرين شاباس تاسي ډيرلوی کاروکړ اولـه عـراق څخـه موديـوې پيـړی لپـاره دسـرخوږی او بغـاوت جـرړې وويستلي !!!

# په نایجیریاکې نوې پېښې او دلته دلویدیځ شوم پلانونه

شهید زوی

په نایجیریاکې دمسلمانانو دبو کوحرام نومي تنظیم له لورې د کابو ۲۵۰ زده کونکوانجونو د تښتول کېدو نه پس نایجیریا ځان ته د ټولي نړۍ توجو راجلب کړه ؛ د پېښې په اړه په نړیواله سطحه د ډېر زیات غم ، تشویش ، غصې ، سریع عکس العمل او زیاتې توجو سبب دا دی چې تښتونکي مسلمانان او تښتول شوی انجونې مسیحیانی دي .

نایجیریا د نفوس په لحاظ د افریقا د لویې وچې تر ټولو ستر او د نړۍ په سطحه اووم هېواد دی د نفوسو شمېر یې کابو ۱۷۳ میلیونو ته رسېږي ، چې ۵۵ سلنه یکې د مسلمانانو ۴۵ سلنه د مسیحیانو او ۵ سلنه یکې د نورو عقائدو لرونکو ده .

خود دې لپاره چې د نفوس په لحاظ د افریقا پدې تر ټولو ستر هېواد کې مسلمانان اقلیت ثابت کړای شي د (( پیو ریسرچ سنټر )) نومي امریکایې موسسې له لورې د (( مذهب او ښاري ژوند )) تر عنوان لاندې په یو خپور شوي راپور کې راغلي ووچې مسلمانان ددې هېواد ۴۸،۸ او مسیحیان ۴۹،۳ سلنه تشکیلوي ، همدا راز (( ایسوسی ایش آف ریلیجن ډیټا نومي )) لویدیځې اداري ویلی چې د دې هېواد دنفوس ۴۵،۵ سلنه مسلمانان او ۴۶،۵ سلنه عیسویان او باقي پاتې دنورو عقیدو لرونکي دي ، دا دواړه غربي اداري د څېړنیزو ادارو په نوم کار کوي چې محدود اداري تشکیل او وسائل لري ؛ سرویګانې د دې دواړو ادارو کار دی چې د هغې نتایج او اعدادو ارقام هم غیر حقیقي دي ؛ د یو هېواد دنفوسو سر شمېرنه ډېره پراخه او اوږده پروسه وي چې د لسګونو زرو کار کوونکو پر ته یې تر سره کېدل نا ممکن وي .

د سوډان په څېر نایجیریا هم په عیسوي مېشتو او مسلمان مېشتو برخو ویشل شویدی، په شمال او شمال غرب برخه کې یې مسلمانان او په جنوب کې یې عیسویان مېشت دي ، په جنوب غرب کې د مسلمانانو شمېر تر عیسویانو کم دی خو په مرکزي برخه کې د مسلمانانو اکثریت دي ، دا هېواد ۳۶ ولایتونه لري ؛ دلته تر ۵ سو پورې لساني ډلې شتون لري ؛ نایجیریا د ټولې افریقا دوهم ستر اقتصاد دی ؛ د اقتصاد زیاته اتکاء یې په تېلو ده چې یواځې په ۲۰۱۱ م کې د نایجیریا د صادرو شویو تېلو حجم د ۶۱ ملیارد و ډالرو نه اوړېدلی و .

نو سره له دې چې دا هېواد د تېلو ډېری سترې زېرمې لري خوچې وربانديې مسلط حاکمان ټول په مالي فساد کې ډېر زیات ککړ دي نو دا هېواد د تېلو د لویدیځوالو شر کتونو لپاره خورا په زړه پورې هېواد دی ؛ د او سېدونکو اکثریت یې د غربت ښکار او دا هېواد د نړۍ په وروسته پاتې هېوادونو کې شمېر دی .

د خپل دین سره د نایجیریا د مسلمانانو مینه مثالي ده ؛اکثریت یې د صوم او صلاة پابند خلک دي او په جمعې د لمونځونو داداکولو یکې دومره اهتمام کېږي چې د سر کونو په غاړو قدم په قدم د لارویانو لپاره تل جای نمازونه غوړېدلي تر ستر ګو کېږي او هر کال په سونو زره د حج او عمرې داداکولوسعادت حاصلوي .

سره له دې چې پدې هېواد کې د مسیحیت د خپرولو لپاره لویدځ شپه او ورځ پر ځان یوه کړیده او دلته د غربي کثیف کلتور د رواجولو لپاره په زرونو این جی او ګانې کار کوي خوچې په هېواد کې په لسګونو زرو وړو او سترو مدرسو کې علماء په ډېر اخلاص د

مسلمانانو د بچو په ديني ښوونې او روزنې بوخت دي نو له بر کته يې تر ډېره حده د مسلمانانو د فکرونو او عقايدو ساتنه شوېده .

د ديني علومو سره د دې هېواد د علماء و مينه هم مثالي ده تر دې چې هر کال د هېواد د خپلو ديني مدرسو نه فارغ شوي ګڼ شمېر علماء د لازياتو ديني علومو دزد کړو لپاره سعودي عربستان ، مصر ، هندوستان ، او په لږ شمېر کې پاکستان ته مخه کوي ؛ د انفرادي ديندارۍ تر څنګ د دې هېواد مسلمانان په اجتماعي ژوند کې هم دين ته په ډېر لوړ مقام قائل دي ؛ د شريعت دنفاذ لپاره يې په تېرو وختونو کې ډېر کوښښونه کړي اوپه نفاذ يې کامياب شوي هم دي .

په ۱۹۰۳م کال کې دا هېواد بر تانې قبضه کړ ؛ دبر تانې دقبضې نه وړاندې د شمالي نايجيريا زياتره برخې د سو کوټو خلافت برخه وه ؛ ۱۸۰۲م کې نامتو ديني عالم عثمان دان فوديو د ځايي بې دينه حاکمانو پر ضد د جهاد بيرغ پور ته کړی او په نتيجه کې يې په (( سو کوټو )) کې اسلامي خلافت رامنځته شوی و چې د نايجيريا شمالي برخې هم ورسره يو ځای شوې وې ؛ دا خلافت تر هغې قائم و تر څو چې انګريزانو سيمه قبضه کړه ؛ په سو کوټو کې د خلافت دهمدې اوږد تاريخ دشتون له امله اوس هم دلته سلطان نه امير المؤمنين ويل کېږي.

داچې دنايجيريا مسلمانانو دشريعت دنفاذ لپاره خپل کوښښونه مسلسل روان ساتلي نو کوښښونويې اوس هم نتيجه ور کړی او ويل کېږي چې د کال ۲۰۰۰م نه راپدېخوا د هېواد په شمال کې د مسلمانانو په ۱۲ ولايتونو کې شريعت نافذ شويدي .

په ۱۹۹۹م کال کې چې کله دفوځ له لورې ملکي سياستوالو ته واک سپارل کېدلونو تر څنګ يې دا تړون هم شوی و چې ولسمشر به د شمالي او جنوبي نايجيريا نه نوبت په نوبت راځي .

د جنوب سره تړاو لرونکی ،، او باسانجو ،، لومړی ولسمشر شو ، د ولسمشرۍ د مودې په پوره کېدو اوباسانجو په ډېرې چالاکۍ دا معاهده تبديله کړه ؛ د دوهمې مودې لپاره بيا د ولسمشرۍ په چوکۍ قابض شو او وعده يې وکړه چې ورپسې به د شمال سره تړاو لرونکی مسلمان ولسمشر هم د دوه دورو لپاره ولسمشر وي ؛ په ۲۰۰۷م کې ،، عمر موسی يار دوا ،، دنايجيريا ولسمشر شو خو په ۲۰۱۰م کې هغه ومړ چې په نتيجه کې يې د ولسمشر مرستيال ،، ډاکټر ګډلک جوناتن ،، ولسمشر شو کوم چې د جنوبي سيمې سره تړاو لرونکی عيسوي و ؛ د ولسمشرۍ د مودې په پوره کېدو نومو ړي د خپل ګوند په نمايندګۍ بيا ځان ولسمشرۍ ته کانديد کړ حال داچې د ولسمشرۍ نوبت د شمال سره د تړاو لرونکو مسلمانانو و؛ په انتخاباتو کې نومو ړی بريالی اعلان شواو يوځل بيايې د ولسمشرۍ واک په لاس کې واخست ، مسلمانانو ددې کار سره شديد مخالفت ښکاره کړ چې له امله يې په مر کزي ولايت کدونه کې د مسلمانانو او مسيحيانو تر منځ نښتې رامنځته او په يوې ورځ کې ۵ سوه تنان مړه شول خوهغه واک پرېښودو ته چمتو نه شو .

د عيسوي دولت په دوره کې د مسلمانانو په تاوان ډېر بدلونونه رامنځته شول چې تر ټولو خطرناک يې په عيسوي مېشتو سيمو کې د تابعيت ، سياست کې د برخې اخستلو او د رای د ور کولو د حق نه د مسلمانانو محرومول دي ؛ ځکه چې دولت سياسي ليډرانو ته داحق ور کړی و چې ديو چا په باره کې ددې پريکړه وکړي چې ځايي اوسېدونکی دی يا نه ، نو د هېواد په جنوب کې چې اکثريت دعيسويانو دی د عيسويانو د ګوندونو مشرانو يو مسلمان ته هم د ځايي اوسېدونکي سند نه ور کوي چې له امله يې په جنوب کې مېشت ټول مسلمانان د تابعيت نه ورو ورو د بې برخې کېدلو له امله د دولتي وظيفو ؛ خپلو ځمکو او جايدادونو او په سياست کې د برخې اخستلو نه بې برخې کېږي .

۱۹۹۰م نه راپدېخوا چې له لږې مودې پر ته پر دې هېواد تر ننه د عيسويانو واکمني ده ، پکې ګڼې کلېساوې ؛ مسيحيت ته دعوت ور کونکي اداري او مسيحيت ته د مسلمانانو د بچو اړولو په موخه په مسلمان مېشتو سيمو کې داين جی او ګانو په لاس ډېر زيات مکتبونه رامنځته شول چې مقابله يې يواځې مدارس کوي اوعلماءو ددې مقابلې لپاره پر ځان شپه او ورځ يوه کړېده تر څو د مسلمانانو بچي د بې لاريتوب او مسيحيت ته د اوړيدلو نه بچ شي .

بو کوحرام چې ږومبنی مشر یې ,, ملام لاول ،، و ابتدايې تشکیل یې په ۱۹۹۵ کې د (مسلم یوت ار گنایزیشن ) په نوم دهمدې هدف لپاره رامنځته شو چې د بې لاریتوب او مسیحیت ته د اوړېدلو نه دمسلمانانو دبچو ساتنه وشي ؛ ,, ملام لاول ،، چې څه موده پس د لوړو زدکړو د تر لاسه کولو په موخه د هېواد نه بهر ته ولاړ نو د دې منظمې مشري محمد یوسف ته پاتې شوه ؛ محمد یوسف په ۲۰۰۲ م کې په مېرو گوري نومي ښار کې د دې منظمې لپاره نوی یانې ,, جماعة اهل السنة للدعوة والجهاد ،، نوم کېښود چې پدې نوي نوم دنومولو هدف د هغه مهال د سناتور علي مودو شریف په مشرۍ کې په یورنو نومي ولایت کې د شرعي نظام نفاذ و خو دا چې دې تنظیم د فساد ، بډو اخستلو او نورو بدیو پر ضد ډېر زیات کوښښونه وکړل نو ځايي خلکو ور ته بو کوحرام ویل شروع کړل ؛ په ځايي ژبې (( هوسا )) کې بو کو دروغو ،فریب ، دوکې ، بدۍ او گناه ته ویل کېږي او حرام خو د عربۍ ژبې لفظ دی چې هر مسلمان یې په معنی پوهېږي نو د بو کوحرام مفهوم گناه بدي دروغ حرام دي ، شوه خو لویدیځې رسنۍ او مخالفین وايې چې بو کوحرام د ,, عصري علومو زدکړې حرام ،، معنی لري ، ددې تنظیم مخالفین په نړۍ کې د دې تنظیم د بدنامولو په موخه تر دې حده تللي چې وايې د بو کوحرام معنی ,, زدکړې حرام ،، ده .

هو! بهر نو این جی اوگانو چې ددې هېواد په مسلمانانو کې د مسیحیت د خپراوي په موخه کوم مکتبونه جوړ کړیدي محمد یوسف د دې مکتبونو خلاف و او د مسیحیت نه د مسلمانانو د بچو ساتنه یې غوښتله نو ځکه یې ستر جومات او ددیني اوعصري زدکړو لویه اداره جوړه او دابن تیمیه کمپلکس په نوم یې و نوموله ، پدې ستر دیني مرکز کې د زدکړو لپاره د ټول هېواد تر څنګ د نېږدې بهرنو هېوادونو نه هم مسلمانانو خپل بچي راوستل ، د بورنو ولایت چې د انگریزانو د قبضې نه وړاندې یو مستقل هېواد او شریعت پکې نافذ و او د کنوري قوم په نوم د مسلمانانو پکې اکثریت دی همدا ولایت یې د خپل فعالیت مرکز گرځولې او د عیسوی مکتبونو په مقابل کې یې داسې گڼ مکتبونه جوړ کړي و چې هم پکې مسلمانانو کوچنیانو ته عصري علوم ورښوول کېدل ؛ هم یې دیني روزنه او د مسیحیت په

شمول د گمراهۍ د ټولو لارو نه ساتنه کېدله چې همدا دځايې او بهرنو اسلام د ښمنو مسیحیانو اوپه ځانگړې توگه دلته دفعالو این جي اوگانولپاره د زغم وړ نه وه نو دهمدې این جي اوگانو دفشارپه نتیجه کې لومړی دامدرسې ددولت له لورې د گڼو محدودیتونوښکار شوې اوبیاېې دولت دورانولو اقدام وکړ.

دروان ۲۰۱۴ م کال په پیل کې دلندن نه خپرېدونکې دالقدس العربي نومي جریدې له لورې په یوخپور شوي راپور کې راغلي وچې دنایجیریاپه شمالي برخو کې موجودوديني مدارسواومکاتبو دفعالیتونو دمحدودولو په موخه دنویواصلاحاتوپه نوم دولت دمدارسواو مکاتبوپر ضد گڼ ناوړه اقدامات تر سره کړیدي ؛ ددیني زدکړو لپاره دبهرنوهېوادونواوپه هېواد کې دننه دنورو سیمونه دراغلو طالبانو په باره کې دولت پرېکړه کړې چې باید دمدرسونه اخراج اوخپلوسیمواوهېوادونو ته ولېږدول شي ؛ مدارسو کې دمسافروطالبانو لپاره له پخوانه درائج لیلیه نظام ختمولوپرېکړه یې کړیده ؛ دمدرسومشرانو ته یې حکم کړیدی چې ساعتونه دې راکم اودنورومذهبونودبطلان یاکمي خبره دې استاذان طالبانو ته نه کوي ؛ ددې تر څنګ به پر دولتي تلویزون دمدارسو پر ضد داتبلیغات هم کېدل چې نصاب یې ډېر زوړ اوبې گټې دی ؛ مدارس بې کاري زیاتوي او ورنه فارغ عالمان دټولنې داوږو بار وي نوځکه باید دمدرسو نصاب بدل اواوپکې عصري مضامین ورننویستل شي.

پدې اړه داناطولیه نومي ترکي خبري اژانس له لورې په خپور شوي راپور کې راغلي وچې له ۱۱ مې عیسوي پېړۍ نه دانگرېزانو تر قبضې پورې په نایجیریا کې دمدارسونظام ډېر ښه روان و او ترې ستر ستر علماء فارغېدل خودانگرېزانو دقبضې سره سم چې دملي بودیجې نه مصارف ور کول بند اوپرې گڼ بندیزونه ولگول شول نوپه هېواد کې دمدارسوفعالیت ډېر کمزوری شو ؛ دبدایو خلکو بچودانگریزانوله لورې جوړوشویوستر و تعلیمي موسساتومخه کړه اودغریبوبچیان کابوټول بې سواده پاتې شول ځکه خودانگرېزانو دوتلونه پس نایجیریا دانساني قاچاق سترمرکزوگرځېد اوله همدې بې سواده طبقې نه په نړیواله سطحه دفسادنه ډکو کارونو زیات کار واخستل شو ؛ دیني عالمانو همت وکړ اودهمدې غریبانولپاره یې په

هېواد کې په زرونومدارس اومکاتب جوړ کړل چې پکې په یووخت کې دزده کونکو تعداد ۹ میلیونو ته ورسېدلو؛ دلته داستعدادونو د کمښت له امله په ټولومدرسو کې دعربیت اړوند ټولو فنونو او ددیني علومودعالي زدکړو اسانتیاوې نشته خوچې ناظره ، حفظ ، ابتدائي دیني زدکړې اولیک لوست په ټولو مدرسو کې ښودل کېږي نودمسلمانانو ترڅنګ پکې غریبو عیسویانو هم خپل بچې داخلول؛ اوس چې دولت دامدرسې بندې کړې د هېواد پر غریبې طبقې به بیادبې سوادۍ توره وریځ راخپره شي ځکه دولت دغریبو وګړو لپاره بل هیڅ بدیل نه لري .

نوموړې اداري ددې هېواد دعلماءو داتحادې په وینا لیکلي وچې وړاندې به لیبیا ، سعودي عربستان ، کویت اودځني نوروخلیجي هېوادونوله لورې مدارسو سره مرستې کېدلې چې دنیمونه زیاتې به ددولتي مشرانو جبونوته تللې نوهغه مهال دولت ددې مدارسو پر ضد کوم اقدام نه کولو خو اوس چې بهرنۍ مرستې بندې شویدي؛ پکې ددوئ شخصي ګټې نشته اوبرعکس یې د اصلاحاتورا وستلوپه نوم او دمدارسو دورانولوپه سر دلویدیځ نه ښه ډېر مادیات ترلاسه کوي نواوس یې ددې مدارسواومکاتبوپسې را واخسته .

په مطبوعاتو کې یې ددې مدارسو پرضد سخت تبلیغات وکړل اودایې مشهوره کړه چې د هېوادټولې مدرسې د بوکوحرام سره تړاولري اود بوکوحرام دادیني مرکزونه د جهادي تربیت ځایونه او د مستقبل لپاره د جهادي تشکیل مرکزونه دي ؛ورسره سم مرکزي دولت بوکوحرام تروریست ګوند اعلان کړ ؛ پر ضد یې دفوځي عملیاتو نه تم کېدونکې لړۍ پیل شوه او د ابن تیمیه کمپلکس په نوم د ستر ې تعلیمي اداري په شمول یې د مسلمانانو هر ښوونځی پدې نوم وران کړ چې داد بوکوحرام مرکز دی .

په ۲۰۰۹ م کې دولت په بورنو ولایت کې فوځي بیړنی حالت اعلان کړ او په بوکوحرام یې یرغل وکړ ، داچې د بوکوحرام زیاتره غړي غیر مسلح یاې وسلې د دولت د فوځیانو په پرتله ډېرې کمزورې وې نو پکې په زرونو شهیدان شول او د بوکوحرام د مشر محمد یوسف په شمول ۷ سوه تنان فوځ او نورو امنیتي ځواکونو ژوندي ونیول ، چې د محمد یوسف په شمول نیول شویو ټولو تنانو د زیاتو سکنجوله امله دپولیسو په مرکزونو کې خپل ژوند له لاسه ورکړ ؛ د پولیسو په توقیف ځایونو کې د خپل مشر او ۷سوه ملګرو قتل د بوکوحرام غړي سخت وردول ؛ ابوبکر شیخوېي خپل نوی مشر وټاکلو او د خپلو ملګرو او مشر د انتقام په موخه یې د مسلح جدوجهد لار خپله کړه ؛ ابوبکر شیخو چې د لوړو استعدادونو لرونکی دی د بوکوحرام غړې یې په لږ وخت کې منظم کړل ؛ په شمالي نایجیریا کې یې دفوځ اوپولیسو په مرکزونوحملې ترسره اوډېرې زیاتې سپکې اودرندې وسلې ؛ فوځي لباسونه او عراده جات یې تر لاسه کړل چې همدې د پولیسو او فوځ په لباس او عراده جاتو کې یې بیا په پلازمینې ابوجا کې د ملګرو ملتونو په دفتر او د پولیسو په مرکزي دفتر بریدونه وکړل.

ابوبکر شیخو ،،یاشیکاو ،،چې د محمد یوسف مرستیال و په اړه یې دولت ګومان کاوه چې د۲۰۰۹م په دولتي سختی حملې کې به وژل شوی وي خوچې په ۲۰۱۲ م کې پر یوټیوب د هغه ویډیو خپره شوه نو دولت یې ډېر ورخطا کړ ؛ هغه مخامخ ولسمشر او عیسوي مشران مخاطب کړي او ورنه یې د ۲۰۰۹ م په حملې کې د وژل شویو تنانو د انتقام اخستلو ګواښ کړی و.

دولت د ۲۰۱۳ م کال د اپریل په ۱۶ او ۱۷ نېټو دمسلمانانو په بورنو ، یوبی ، او آدم وانومي سیموحمله وکړه چې پکې ګڼ شمېر مسلمانان شهیدان شوي وو

د دې تر څنګ د پلیټو نومي ولایت مسیحي والي هم پر مسلمانانو حملې پیل کړې چې په سونو مسلمانان پکې قتل او په زرونو بې کوره شول ، د عملیاتو په جریان کې د فوځ او پولیسو له لورې پر مسلمانو مېرمنو جنسي تېرې هم شوي وو .

د بشر د حقوقو د نړیوالې اداري له لورې په خپور شوي راپور کې راغلي وچې د ۲۰۱۳م کال یواځې په رومبو ۶ میاشتو کې ۹۵۰ زره مسلمانان زندانونو ته ورل شوي وو.

د ۲۰۱۳ م کال د مئی په ۱۴ مې نېټې عیسوي ولسمشر ګډلک جوناتن په بورنو ، یوبو او آدم وانومي سیمو کې فوځي بېړني حالت

اعلان کړ هوایي او ځمکنۍ حملې یې پیل کړې چې یواځې په هماغه ړومبۍ ورځ له ۲ سوه نه زیات مسلمانان ووژل شول ؛ فوځ ټولې سیمې محاصره کړې وې او د مسلمانانو کورونو ته یې اور اچولی و چې ګڼ تنان پکې ژوندي وسوځېدل ، دولت پدې دواړو ورځو کې د ۲سوه مسلمانانو په وژل کېدو اعتراف کړی و خوازادو رسنیو د وژل شویو تنانو شمېر د ۲ سوه نه ډېر زیات ښودلو .

که مسلمانان په زندانونو او د پولیسو په توقیف خانو کې وژل کېدل ، که په خپلو کورونو کې سوځېدل که له خپلو کورونو بې ځایه کېدل او که پر مسلمانو مېرمنو جنسي تېري کېدل نه د ملګرو ملتونو اداري څه ویل ، نه لویدیځو رسنیو ددې سترو ظلمونو نه پردې پورته کولې او نه هم امریکا او نور لویدیځ په حرکت کې راتللو خو اوس چې د مسیحي انجونو د تښتول کېدو خبره ده نو لویدیځو دولتونو ، مدني ټولنو ، رسنیو او د بشر د حقوقو په نوم غربي ادارو نړۍ په سر راخستې ده.

هو! موږ چې د لویدیځ دا اسلام دښمني غندو نو تر څنګ یې د بوکوحرام له لورې د انجونو د تښتونې دا عمل هم د شرعي اصولو له مخې د تائید وړ نه بولو ، او پدې هم پوهېږو چې له ګټې یې تاوان زیات دی ؛د اسلام، عامومسلمانانو ،په نایجیریا کې د شریعت غوښتونکو نایجیریایي مسلمانو او خصوصاً د بو کوحرام سره تړاو لرونکو مسلمانانو د بدنامولو لپاره ددې پېښې نه لویدیځ او لویدیځو رسنیو ښه ګټه پورته کړه، نو داپېښه په نړۍ کې د اسلام او مسلمانانو د بدنامۍ سبب شوه .

له بوکوحرام پر ته چې په نایجیریا کې کومې اسلامي دعوتګرې اداري په کار بوختې وې اوس به ور ته ډېر مشکلات پیداشي ؛ اوددې ډېر خطر لیدل کېږي چې د یومنظم پلان له مخې عیسویان هم د مسلمانو انجونو یوه ډله وتښتوي او بیا دا مسلمانې انجونې خدای مکړه بې عفته شي.

دجنوبي نایجیریا نه داسې راپورونه راغلي چې دعیسویانوله لورې د دې پېښې نه پس د مسلمانانو د کورونو ؛ ځمکو او تجارتي ځایونو غصبول پیل شوي چې له امله یې ګڼ شمېر مسلمانان د جنوبي نایجیریا نه شمالي نایجیریا ته په کډه شویدي ؛ دالړۍ شاید زور واخلي چې ور سره به د مسلمان مېشتو سیمو نه هم ټول مسیحیان جنوبي نایجیریا ته ورغونډ شي چې پدې سره به په پخپله په ډېری اسانۍ نایجیریا لکه دسوډان په جنوبي او شمالي برخو وویشل شي چې امریکا او نور لویدیځ همدا غواړي.



جنوبي نایجیریا چې د تېلو ډېرې غني زېرمې او سمندر ته لار لري امریکا او ټول لویدیځ پلان لري چې ور ته عیسویان راغونډ او له مسلمانانو خالي شي تر څو په نېږدې راتلونکې کې د ملګرو ملتونو تر چتر لاندې دلته یوه ټولپوښتنه رامنځته شي چې په نتیجه کې به د ملګرو ملتوله لورې د مستقل هېواد منظوري ور کړل شي او دلته به هم د لویدیځ په زور یو عیسوي دولت رامنځته شي چې ټولې سیمې ته به د مسیحیت د خپراوي ستر دعوتي مرکزو ګرځي، لکه لویدیځ چې په سوډان کې همداسې وکړل .

دابه د دوئ پلان وي نور به کېږي هغه څه چې الله تعالی د څه اراده کړې وي ؛ موږ به د خپل خدای نه هغه څه غواړو چې پکې د اسلام او مسلمانانو خیر وي.

بسم الله الرحمن الرحیم

# ستر محدث او فقيه ، حضرت امام نووي

ژ : لطيف عزم

داسلام زرین تاریخ ددیني علومو په هغوامامانو، مجتهدینواواسلافو ځلنداوروښانه دی ، چې هغوداالله حکم اونفیرته په لبیک ویلوسره خپل ټول عمردشرعي علوموزدکړي ، تدریس ، تالیف اواستنباط ته وقف اودټولني غوښتنواواړتیاووته یې دالهي احکامواونبوي ارشاداتوپه رڼاکې ځوابونه پیداکړي .

یوله دغو اسلافواوامامانوڅخه (یحیی بن شرف الدین نووی شافعی ) دی ، چې د٦٣١ ق کال دمحرم په میاشت کې دسوریې په یوې لیرې پرتي سیمي ( جولان . ګولان ) کې دنووي په کلي کې پیداشوی .

پلاریې دیوې مغازي لرونکی اومتدین کس وو چې یحیی یې له وړوکې والي څخه دقرانکریم زدکړې ته ګمارلی و، په لس کلنی کې دقران کریم حفظ ته شروع وکړه

«یاسین بن یوسف مراکشی» وایي چې یوه ورځ مې یحیی ولیدچې نوروماشومانو له ځان سره لوبوته نه پریښوده خوده په دغه حالت کې هم هغه دقرانکریم تلاوت کاوه ، هغه وایي چې زمازیاته مینه پرې راغله ولاړم استادته یې اوهغه ته مې سپارش وکړه چې چې یحیی ماته ډیرذهین اوذکي هلک ښکاري بایدنور کوشش هم ورسره وکړی، ترڅوکه الله ته منظوره وي اوله یحیی څخه یولوی عالم او مقتداجوړشي ، یاسین مراکشي وایي چې الله تعالی دي دیحیی استادته خیرونه ورکړي زماخبره یې ومنله زیاته توجه اوپاملرنه یې پرې کوله ، کله چې استادپرې پوه شوچې یحیی ته الله تعالی لوی ذکاوت ورکړی اوله دین سره ستره مینه لري نو دیحیی له پلارڅخه یې وغوښتل چې نوموړی دنوروعلومو اوفنونوله پاره دمشق ته بوځي اودلویو استادانو دپرورش غیږې ته یې وسپاري .

حضرت امام یحیی په خپله لیکلي چې په کال ٦٤٩ ددمشق په ( رواحیه ) مدرسه کې دوه کاله دیره شوم اوپه ډیرجدیت مې درسونه وویل اودزیاتونوفنونو متون مې یادکړل ، همدغه علت وو چې زمااستاد «کمال بن اسحاق مغربی» ماته زیات اهمیت راکاوه ، زیاربه یې راسره ویست اوزه یې دخپلو ګڼوشاګردانو داستادپه حیث ګمارلی وم .

امام نووی رح ، په کال ٦٥١ کې له خپل پلارسره په حج مشرف شو، له راګرځیدووروسته یې دعلومو دترلاسه کولو روحیه نوره هم پرفیضه اوګړندی شوه ، «علاءالدین بن عطار» چې دامام نووی شاګرددی هغه وایي ، استاذبه یې دورځې ١٢ کتابونه تدریسول اوپه هغو به یې تعلیقونه اوشرحې هم لیکلي .

دحضرت امام نووي رح ، استاذانوته په لاندې ډول اشاره کولای شو.

-اسحاق بن احمد مغربی
-عبدالرحمان بن نوح مقدسی مفتی دمشق
-عمر بن اسعد اربیلی
-سالار بن حسن اربیلی ملقب به امام مذهب شافعی
-ابن قدامه مقدسی
-عمادالدین ابوالفضائل قاضی القضاة دمشق

دامام نووي رح په مواصفاتو کې راغلي چې هغه ډیر منظم ،دوخت په ارزښت پوه اویوه لحظه یې هم پرته له درس ، تدریس ، تالیف اومطالعه څخه نه تیروله .

امام «ذهبی» وایي ،امام نووي رح لوی زاهد، متقي اودنیکواخلاقو څښتن وو، تل به یې ساده خوراک اولباس خوښاوه ،الله تعالی به یې په هرحال کې حاظراوناظرباله او الهي ویره به یې په زړه کې پرته وه .

علاءالدين بن عطار وايي : امام نووي رح په ددمشق ميوه نه خوړله ، مايوه ورځ تـرې وپوښتل چې تـه ولي ميوه نـه خـوري ، هغـه راتـه وويل چې ددمشق اکثره ځمکي موقوفه اوياديتميانو ملکيت دي ، له هغوسره دعدل اوانصاف معامله نکيږي ، نوځکه يې خوراک راته سُتره او له شبهي خالي نه ښکاري .

دامام نـووي دهمدغـه معنويت بركت وو چې لـوى لـوى خلـك يې دشاګردانوپه زمره کې راغلل اولوى فيض يې ترې واخيست ، چې له هغوڅخه (علاءالدين بن عطار ، احمد بن ابراهيم بن مصعب ، احمد بن فرج اشبيلى ، اسماعيل بن معلم حنفى ، محمد بن ابوالفتح حنبلى ، ابوالفرج بن محمد مقدسى ، ابن جماعه يوسف بن عبدالرحمان مزنى ) يادېږي .

دعلم اوتقوا دغه ځليدونکى ستورى په کال ٦٧٦ هجري کې کله يې چې خپل ابايي ځاى نووى ته له دمشق څخه دستنيدو اراده وکړه ، نوړومبى يې هغه ټول کتابونه چې له کتابخانواو علماوو څخه يې امانت اخيستي وو هغه يې ورته وسپارل ، بيادخپلو وفات شوو استادانو هديروته ورغى دعاګاني يې ورته وکړي .

امـام نـووي رح چې کلـه لـه دمشق څخـه ستنيده پـه سوونو شاګردانو اوملګروپې ورسره تريوه ځايه پوري ملتياوکړه اوپه ډير درناوي يې خداى په اماني ورسره وکړه.

داسلام دغه لوى محدث اوفقيه ، په خپل ابايي ټاټوبي کې زيات وخت تيرنکړ ديوې ناڅاپي ناروغى لـه املـه د٤٦ کلونوپـه عمر لـدې فاني دنياڅخه سترګي پټي کړي

دهغـه دشاګردانوپه وينـا امـام نـووي رح پـه کـال ٦٦١ پـه ٣٠ کلنى کې دکتابونوپـه تـاليف پيـل وکـړ اود١٥ کلونوپـه اوږدوکـې يـې ٥٠ عنوانـه مقبـول کتابونه ، رسالي اوشروحي په حديثو ، فقه ، اصول اواخلاقو کې تاليف او وليکلي ، په دې معناچې دحضرت امام نووي رح دبيش قيمته تاليفات دهغه مبارک له عمر څخه زياتي وي

دامام نووي رح مشهور تاليفات اوتصنيفات په لاندې ډول دي .

-اربعين ( ٤٠ حديث )

-رياض الصالحين

-شرح صحيح مسلم ( په ٢٦ جلدو )

-المجموع شرح مهذب ( په٢٢ جلدو )

-المنهاج

-الفتاوى

-الايضاح

-الترخيص

-الروضه

-الاذكار او. ..

په جرأت سره ويلاى شو چې دامام نووي رح اثار داسلامي علومو دترويج ، تدريس اوتوضيح لپاره يوه تلپاتي او بيساري خزانـه ده او دهـر دور دعلمـاوو ، محققينواواسلافو لپاره دلاري دمشال حيثيت يې خپل کړى او دحديثواوفقه په ميدان کې لوى خدمت سرته رسولى .

امام نووي رح دشرعي علومو له تاليف ، ددينې مسايلو له استنباط سره دومره ژوره مينه درلوده چې نکاح کولو ته يې فرصت پيدانکړ ، له همدې کبله ويلاى شو چې حضرت امام له ځانه ورسته صرف خپل ارزښتمند ديني اثار ، کتابونو او سوونه فقهااوشاګردان پرې ايښي .

امام نووي دخپل کتاب په يوه حاشيه داسي ليکلي :

اموت ويبقى كلما كتبته فياليت من يقرأكتابى دعاليا لعل الهى ان يمن بلطفه ويرحم تقصيرى و سوء فعاليا

زه مر کيږم اوماچې څه ليکلي هغه په خپل ځاى پاتـه کيـږي ، خوکاش چې هغه څوک زماکتاب اونوشته ولولي اوبياماته دعاوکړي ، اميدشته چې الله تعـالى ، پرماشـفقت وکـړي اوزمالـه کوتاهيواوګناهونوراتيرشـي اومرحمـت راباندي وکړي .

نودرنو لوستونکو ، راځى چې دزړه له تله دخپلو دغو خواخوږو نيکواسلافو اوپه خاص ډول دامام نووي رح هغه کړاوونه اوزحمتونه چې ددين په لار کې يې ګاللي اولوړې کارنامي يې مونږ ته پرې ايښي دخيردعاوي وکړو چې ياالله تـه خپل دغه نازولي او مخلص بندګان دخپل رحمت اولطف مستحق وګرځوه ، سعيي يې قبولي اودصديقينو ، شهداوو اوصالحينوپه زمره کې يې حساب اوراپورتـه کړه . امين ،

سعادت کامران

# بَو برګډال د C I A په قفس کې

بَـوبرګډال هغـه امریکـایي ضـابط وو چـې پنځـه کالـه وړاندي دافغانستان په خوست ولایت کي دشهید مولوي صاحب سنګین فاتح دسري عملیاتو دګروپ لـه لوي پـه پوره مهارت سره پـه داَسي حـال کي ونیـو چي لـه خپلې قرارګا دباندي را وتلی وو

برګډال چي دامریکایي وحشي پوځ یـو ضـابط وو او لـه نوم سره یې اوس هـر څـوک آشنا دي لـه نڅ دې څخـه یې دڅان او خپلوملګرو هغه وحشتونه چي پـر افغـان ولس یې کول په وار وار په خپلو سترګو لیـدلي ول دا فکر کـاوو چي نور مي دژوند یو ستړی پړاو پیل شو

bragdallڅکـه دوی لـه افغـان بندیانوسره کـه پـه دا خـل دافغانسـتان کـي ول لکـه بـاګرام او قنـدهار او کـه پـه ګوانتانامو کي ول هغه څه کول چي دانسانیت په تاریخ کي چا نه لیدلي وو او نه یې اوریدلي وو حتی امریکـایي سر غنـه بش اباما او پاپانو یې دوی دجنګي مجرمینو له لیست نه هم وایستل دا ددې لپـاره چي کـه دوی ور سره هـر راز غیـر انساني سلوک کاوو نو دوی بـه یې کـولای شي او څـوک بـه ورته دا نه وایي چي ولي ؟

دا ټول هغه څه ول چي دامریکایي ضابط بَو حـواس یې مختـل کـړل بـل داچي هغـه چا چي دی یې دافغانستان وخاورې ته دناموجهي جګړې په موخه مرش کړی وو هـم ورته دا دازادۍ غوښتونکي ځوانان داسي ورښودلي وو چي ده ورته اصلا دانسانانو په ستر ګه نه کتل نو ضرور بـه یې دیوه ستړي تعذیبي ژوند اټکل کاوو خو

دلته هر څه بر عکس وو هغه څوک چي ددوی خلاف یې دخپل هیواد دازادۍ او دیوه سوچه اسلامي نظام دپلي کیدلو لپاره په مبارزه بوخت دي مکمل لـه هغـو سر تـوپیر لري چي ده ورتـه دخیـال مـزي غځـولي وو دلتـه عـدالت وو مینه وه سړیتوب وو رحم او عاطفـه وه یـو قـانون موجـود وو دلتـه دیـوه داسي دیـن پیـروي کیلـه چي ور کي دهرچا او هرشي حقـوق ښـودل شـوی وو دلتـه یـوازي او یـوازي دبر تری معیار تقوا وه او بس

نو همداوو چي بَو له پنځـه کالـه تیریـدلو هغـه څـه زده کـړل چي پـه بـل ځـای کي یې پـه کلونـو کلونـو نـه شـوای اوریـدلای څـه معنـا دا چي یابـه یې زده کـول او یـا بـه هـم ورڅخه متأثر کیده

دمجاهدينو ژوند او ګوزاره له ده سره ديوه صميمي دوست په شان وه هيڅ کله يې هم دنوموړي ته دا حساس ورنکړ چي ته يو بندي يې پخ وراک څښاک اعاشه او اباته کي يې هم له ټولو هغو امکاناتو برخمن کړی وو چي ده ورته ضرورت درلود حتی چي دځانو په نسبت يې وده ته توجه زياته وه هم به يې په عامو مجاليسو کي ورسره اشتراک کاوو او هم به يې په لوبو او نښه ويشتلو کي

امريکا چي داسلام له نور نه په ويره کي دي ويريدل چي هسي نه چي بَو مسلمان شوی وي او دتسليمي په جريان کي دي داسي [ه وکړي چي هغه زموږ په مرک تمام شي نو يې مخکي له دينه چي والوتکي ته يې وخيژوي ښه سم تالاشي کړ چي دا پخپل ذات کي پر هغه نه باور او ورته له قانوني پلوه سپکاوی ګڼل کيږي

نو هر کله چي له نوموړي سره داسي يو انساني چلند کيدو نو طبعا دده په فکر او اراده کي به بدلون راځي نور که نوي دا خو به ضرور وايي چي له ماسره دبند په موده کي ډير ښه انساني چلند شوی دی

خو دا او دې ته ورته ټول هغه کلمات دي چي امريکا نه غواړي چي ور څخه وايي وري نو يې ددې لپاره چي دپاپانو دتبليغ په مټ يې له داسي څرګندونو نه ذهن ور ووينځي له امريکا دباندي يې په يوه کليسا کي وساتو چي ترڅو ددوی په فکر سم شوی نه وي کورته به يې نه ور ولي خو موږ باور لرو چي له ده سره دامارت دمجاهدينو انساني چلند به هيڅ کله هم نه دتبليغاتو په مټ پيکه کړي نه هم پر (بَو )باندي دفشارونو له لاري ۰

## دروژې په اړه غوره يادوني

١ ـ کوشش وکړه چي په دې متبرکه مياشت کي دخپل نفس ، محاسبه وړاندې کړي ، دنيکو اعمالو تقويه وکړي او دتيرو ګناهونو دبښل کيدو لپاره اسباب برابر کړي.

٢ ـ دتراويحو په لمانځه کي دګډون لپاره حريص وو سه ،ځکه رسو الله صلی الله عليه وسلم فرمايي من قام رمضان ايمانا و احتسابا غفر له ما تقدم من ذنبه)

٣ ـ په مال کي له اسراف څخه ځان وساته ، ځکه اسراف حرام او دصد قودورکړي مخه نيسي.

۴ ـ خپلي ارادي ته يقين او کلک باور وبښه ، ترڅو په رمضان پوري ترلي ټول عبادات او الهي او امر په ښه توګه ادا او استمرار وروبښي.

۵ـ دغه مياشت په اصل کي دعمل او عبادت ده ، نه دخوب او سستی.

۶ـ خپله ژبه هميشه دالله په ذکر لمده ساته او له هغو کسانو څخه مه ګرځه چي الله تعالی يې له ياده ويستلی وي.

٨ ـ کله چي تندي او لوژي درباندي زور وکړه ، نو دا خبره په زړه راوړه چي ته هميشه دالله تعالی نعمتونو او روزي ته اړ او محتاج يې.

٩ ـ دغه مياشت لوی فرصت وګڼه ترڅو نور غير ضروري او بيهوده امور شاته پريږدي.

١٠ـ پوه شه چي عمل يو امانت دی او خپل نفس محاسبه کړه چي نوموړي امانت دي ترکومه حده ځای ته رسولی ؟

١١ـ دهغو کسانو په حق کي چي له روژي وړاندې ظلم درنه صادر شوي وي ، هڅه وکړه چي عفوه ورنه وغواړي ، ترڅو نيکي دي درنه پورته نشي.

١٢ ـروژه نيونکو ته دروژه ماتي په ورکولو کي ګړندی اوسه ، ترڅو لوی اجرونه او برکتونه دې په برخه وګرځي.

١٣ ـ په دې خبره پوه شه چي الله تعالی لوی مهربان او بښونکي ذات دی ، او دتوبه ګارانو توبي قبلوي ، همدارنګه الله تعالی سخت عذاب لرونکی هم دی ، چي بو جاته مهلت ورکوي ولي ،پريږدي يې ،نه.

# یوېشتمې پېړۍ ! د قارون خزانه .....

رحیمي

ډېری خلک په دې حیران پاته دي چې دا دومره پراخه او په څو لویو وچو او سمندرونو ویشل شوې نړۍ د څو سوو خورو پانګوالو لخوا ګرواو اجاره کړل شوې، هغوئ څو تنه د ټولې نړۍ دسرو او سپینو خاوندان دي، تردې چې هغوئ دنړۍ له لویو، لو یو حکومتونو څخه هم زیاتې شتمنۍ او پیسې لري آن د دریمې نړۍ زیاتره هېوادونه یې پوروړي دي.

په نژدې وروستیو کې د امریکایوې مشهورې اوونېزې "فوربس" دنړۍ دهغو شاوخوا زر کسانو نومونه خپاره کړي دي، څوک چې په ملیاردونو شتمنۍ او پیسې لري او دنړۍ په ۴،۵ تریلیون ډالرو قابض دي، د دغو ملیاردورانو لوی شمیر امریکایان دي، چې ملیاردونه پیسې لري، دې تازه انکشاف کې نوې نکته داده چې دملیاردونو په دې سیالۍ کې د میرمنو ونډه هم خورا چاغه ده ،فوربس کاږي: دنړۍ په ۱۱۲۵ملیاردورانو کې ۸۱ میرمنې هم شته چې په ملیاردو ډالر او شتمنۍ لري، دنړۍ په ملیاردورانو کې ۵۱۳تنه داسې دي چې هغوئ پخپل همت او زحمت سره ملیاردونه شتمنۍ او ډالر دځان کړیدي،په دې سربیره هغوئ کې درې درجنه داسې کسان هم شته چې د ثناوې دورې زده کړې یې هم ندې کړې.

فوربس زیاتوي: سږکال ترټولو په زړه پورې پرمختګ دا شوی چې امریکایې پانګوال "وارن بفټ" دمایکروسافټ له مشر "بلګیټس" نه دزمکنۍ کرې دیوا څیني لوی شتمن لقب واخیست!!

"وارن بفټ" یو لوی شتمن امریکایي دی، چې دنړۍ په مختلفو کمپینو کې یې پانګونې کړې، څه موده وړاندې یې اعلان وکړ، چې هغه دخپلې سرمایې ۳۷ملیارد ډالر یعنې دخپلې شتمنۍ ۸۵سلنه په خیراتي کارونو کې لګوي!!تاسې اندازه ولګوئ! چې خپل ځان ته د۱۵سلنه سرمایې په پرېښودو بیاهم هغه دنړۍ شتمن شخص پاته دی، که هغه خپله ټوله شتمني ځان سره ساتلې وای دنړۍ حشر به څه و؟

هغه ماسکو چې یو وخت دکمیونزم دواک پلازمینه و، نن سبا دنړیوالو شتمنو او پانګوالو په مرکزبدل شوی دی، هلته قدم په قدم پانګوال او ملیاردوران اوسي، دچا خبره هلته چې هره تیره اړوې ترېنه یو ملیا دار راوځي! هم دا وجه ده چې اوس په نړیواله توګه دلومړۍ درجه ملیاردورانو څخه ۸۹ تنه چې دهغوئ د شتمنیو اوسط ۶،۱ بلینه ډالر کېږي، ماسکو کې اوسي، دځینوپه وینا: ماسکو اوس دلندن ځای نیولی دی، فوربس لیکي: امریکا ۴۹۵، روسیه ۱۸۹او جرمني ۵۹ملیاردوران لري،دجرمني وروسته هندوستان هغه هېواد دی چې زیات



ملیاردوران لري، فوربس وایي: په لسو لومړۍ درجه ملیاردورانو کې دامریکا دوه، هندوستان څلور، لاطیني امریکا، روسیه، سویډن اوجرمني یو، یو تن ترنورو مخکې ځای لري.

د"روان بفټ (یا بوفیټ)" نه وروسته ملیاردار "کارلوس سالم" دی، دهغه دټولو شتمنیو مالیت له ۶۰ ملیارده ډالرو زیات دی، کارلوس دمکسیکو اوسیدونکی دی، له لبنان څخه دسوداګر په توګه مکسیکوته دیوه لاړ سوداګر سړي ځوی دی، هغه لومړۍ سوداګرۍ دزمکو او جایدادونو دپیر اوپلور نه پیل کړه، بیا وروسته دونډو مارکیټ کې یې کاروبار شروع کړ، بیا یې دمخابراتي شرکتونو په ځانګه کې کار وکړ، اوس مهال هغه دنړۍ دومره لوی شتمن سړی دی چې بلګیټس یې هم له ځان وروسته کړیدی، دسافټ ویر جوړونکي



په توګه دبلګیټس دنوم سره شاید نړۍ کې کم خلک اشنانه وي، هغه تر ۲۰۰۷ زیږیږي دنړۍ ترټولو دلوی شتمن انسان ریکارډ لري، لیکن دتیر کال په پای کې دا ویاړ دمکسیکو کارلوس سالم (یاسلم) ته په برخه شو، هغه بلګیټس له ځانه وروسته کړ، لیکن اوس هم دسوداګرۍ په ډګر کې چې بلګیټس څومره په تیزۍ سره ترقي کوي، هغه ته په کتو توقع شته چې هغه به بیرته په هغه برلاسي ترلاسه کړي، د تازه لاسوندونو او ارقامو له مخې: دبلګیټس دټولوشتمنیو بیه یا مالیت تخمیناً ۵۸ ملیارده ډالر ښودل شوی دی، په کوم کې چې هره ثانیه اودقیقه پس زیاتوالی رازي، ددې مطلب دادی چې بلګیټس هره ورځ ۲۱،۶ ملیونه ډالر ګټي، که دبل ګیټس دلاس نه زرډالر په زمکه پریوزي، دهغو بیرته پورته کولو ته اړتیا نشته، ولې دهغو په پورته کولو څلور ثانیې وخت ته اړتیاده او په دومره وخت کې هغه نور زر ډالر ګټلي وي، امریکا چې اوس مهال ۷،۳ تریلیون ډالر پوروړې ده، که بل ګیټس وغواړي چې دامریکا دغه ټول پور ورکړي، نو لس کاله وخت ته اړتیالري، هم دا راز که بل ګیټس دنړۍ هر اوسیدونکي ته ۱۵ ډالر ورکړي، بیا به هم ور سره د۵ ملیون څخه زیات ډالر پاته وي

که بل ګیټس پخپل ذات کې یوجلا دولت تصور کړو، نو دنړۍ دشتمنو هیوادو په کتار کې به ۳۵ م شتمن اوبډایه هیواد وي، که بلګیټس خپلې ټولې پیسې په یو ډالري لوټونو بدلې کړي او وغواړي هغه له یوښارنه بل ښار ته انتقال کړي، نو دانتقالولو لپاره به یې ۷۱۳ بوینګ الوتکو کارولو ته اړتیا وي، که هغه لوټونه په اوږدوالي وغځوي، ورته به دزمکې او سپوږمۍ ترمنځ شته فاصله ۱۴ واره کمه وي، په ۲۰۰۸ ز کې دا کتوبر په ۲۸ مه بلګیټس ۳۵ کلن شو، که هغه نور ۳۵ کاله ژوندی پاته شي، او په دې موده کې هغه وغواړي چې خپل ټول دولت خرڅ کړي نو هره ورځ به د۶،۷۹ ملیونه ډالرو مصرفولو ته اړتیاوي

یوبل امریکایي ملیاردار "ایلیټ مایکل جارډن" چې هر کال ۳۰ ملیونه ډالر ګټي، که هغه یو ډلر هم خرڅ نکړي، بیا چې هم هغه دبیلګیټس ځای ته رسیدو لپاره ۲۲۷ کلونوته اړتیا ولري.

بلګیټس دنن زماني دقارون په خزانه ناست دی، هغه بیشکه لوی شتمن دی، خو دایمان له رڼا محروم دی، بل پلو دنړیوالو لپاره دا ځورونکی پیغام دی چې دټولې نړۍ پیسې دځوتنو لاسو ته لویدلې، دا کار به په راتلونکې کې نړۍ کې دامن اوثبات په وړاندې ګواښونه زیات کړي، خپلواک هیوادونه به نورهم دفقر اوغربت ښکارشي، دادپانګوال مردود نظام هغه بدې غیر فطري پایلې دي چې دانسانانو له ګونو ویني زبیښي.

# اهل سنت والجماعت یاناجیه فرقه

## مشبهه ، معتزله اواهل سنت والجماعت [redacted]

اوومه برخه

مفتي شاهد حقاني

دځرک مجلې په تیرو بحثونوکې دومره وشنله چې داهل سنت والجماعت د عقایدو ،مفاهیمو او اصطلاح اسلامي اوتاریخي قدامت ،دسلفو اقوال او پدې باب د متقدمینو نظریات ،ددې وزینې اصطلاح ترکیبي او اضافي معاني ،مصداقات اودا چې نن سبا اهل سنت والجماعت چاته ویل کیږي اوپدې هکله دمعاصرو علماوو ترجیحات کوم دي ؟ خو زیاته ځیرنه پدې باب کې د(فتاوی کفایت المفتي ،فتاوی رشیدیه ،دیوبند فتاوی دارالعلوم حقانیه فتاوی ،محمودیه اونورو معاصرو اومستندو فتاوو په سینو کې دسوال اوځواب په بڼه زیات څه شته، خومونږ به یې انشاءالله تعالی دفتوی برخه راتلونکیو مباحثو کې له کره حوالو سره مله پرله پسې رانقلوو، خو که مباحث نور ډیر شو اود وخت او مصلحت حوصله تنګه وه ، نو پخپله هم کولای شو ، چې اړوندو مراجعو څخه استفاده وکړو او دحقیقت تل ته ځان ورسوو ،البته کوم مواد او مباحث چې اړین بریښیدل، دخپل لرلید له مخې مو پکې انشاءالله کوتاهي نده کړې او دلوستونکیو لپاره مو په سلسله واره بڼه ولیکل ،او بیا هم داسې کوو انشاءالله تعالی !

ددې څخه مخکې چې دموضوع نور عمق ته ورننوځو ، دحفظ ما تقدم لپاره به ترهغې مخکې ( دمشبهه وو ،معتزله وو او اهل سنتو ) په اجمالي پیژندنه کې څه تم شو ،او ترڅنګ به ددې درې ګونو فرقو داستدلال دنمط او سبک لنډه طریقه کارهم دلوستوالو سره شریک کړو !

مشبهه فرقه : دې فرقې ته مجسمه فرقه هم وایې ،دوئ دآیتونو او احادیثو په ظاهري معنی حملولو کې دومره زیاته مبالغه کوي ،چې دتشبیه او تمثیل تر سرحده پورې پکې رسیږي او پدې نظریه معتقد دي ، چې الله جل جلاله اعضاء یا جوارح لري ، هغه خوله ،لاس او قدم لري اولکه څنګه چې ددنیا یو بادشاه په شاهي تخت کښیني ، همداسې ګوندې الله جل جلاله هم په عرش ناست دی ،دوئ دالله تعالی په هکله له حماقت ،جهالت او غفلت له مخې دجسم او جسامت دتشکل فکر کوي او ددې آیتونو له تنزیه څخه سترګې پټوي، چې فرمایي [لیس کمثله شئ] یا [الم یکن له کفوا احد] یا [ولله المثل الاعلی] چې نصوصو کې په ډاګه ددې مشبهه فرقې ددې نظریې تردید راغلی، چې الله تعالی دخلکو غوندې ندی او نه څوک ددې مثل او مماثل شته، بلکې که کوم صفات ورته قرآنکریم کې راغلې دي ، لکه مشهور فقیه او محدث (ملا علي قاري رح )چې وایي ،نفي به یې څوک نشي کولای ،خو څوک به یې له خپله بطنه دتشریح حق هم نلري ، بلکې دا سې به ویل کیږي ،چې کوم صفات یې چې په نصوصو کې ثابت دي (کمایلیق بشانه ) به وي او دمشبهه وو غوندې به ورته څوک دتجسم او مماثلت تعریفات نه کوي .

معتزله فرقه:دا معتزله فرقه دمشبهه فرقې پرعکس نصوص له ظاهري معنی څخه نفي کوي او د حقیقت پرځای مجاز طرف ته دمعنی صرف کوي ، دنص د ظاهري معنی په ترک کې دومره غلو کوي ،چې دتعطیل تر پولې پورې

ورسیږي او دظاهري معنی له حیثه دالله تعالی له اسماوو او صفاتو څخه منکریږي ،ددې ترڅنګ دکوم حجت او دلیل پرته په نصوصو کې تاویلات کوي ،په بیلګې کې(حضرت مولینا ادریس کاندهلوي رح) په(عقاید الاسلام) لومړي ټوک داسې لیکي: ((مثلاً قرآن اورحدیث مین جهان کهین حق تعالی کی لی لفظ ید آیا هی ،کبهی قوت اور قدرت کی ساتهاس کی تاویل اور کبهی نعمت کی ساتهاس کی تاویل کی ،کہ ید سی قدرت یا نعمت مراد هی حالانکہ قرآنکریم خود اس تاویل مهمل کی مفاسد هونی کا حکم کرتا هی اس لیئ کہ قرآن کریم مین ید کا تثنیہ یدین بمعنی دوهاتهہ بهی آیا هی چنانچہ حق جل شانہ کا ارشاد هی :[ما منعک ان تسجد لما خلقت بیدی ]سورت ص آیت ۷۵---------------) یهان ید سی قدرت کی معنی لینا صحیح نهین اس لیئ کہ آیت مین صیغہ تثنیہ کا هی یعنے دونون هاتهون سی پیدا کیا اور ظاهر هی کہ خدا کی قدرت ایک هی ،خدا کی لی دو قدرت کا کهنا غلط هی ............] دمولینا آدریس کاندهلوي )دتحقیق مطلب دادی، چې کله قرآن او سنت کې د(ید )کلمه دالله تعالی لپاره راشي ،نو په قدرت ،نعمت او نورو یې ترجمه غلطه ده ،ځکه که قدرت شي ،نو دحضرت آدم علیه السلام دا فضیلت چې الله تعالی وایې ،چې په دواړو یدینو مې پیدا کړ، بیا له نورو مخلوقاتو سره څه تفاوت شو او دآدم علیه السلام بیا کوم فضیلت شو ،نو دا سې تاویلات چې دالله جل جلاله صفات نفي کوي او دنصوصو ظاهري معنی ترک اوپکې بې ضرورته او له کوم شرعي دلیل پرته تاویل کوي دمعتزله وو هغه کار دی ، چې دمجسمه وو بر عکس دی او دا ناروا دی.

اهل سنت والجماعت:دا داهل حقو هغه ډله ده، چې له نصوصو او دسلفو صالحینو له معتقداتو سره برابره او دبې لاریتوب او باطل پالنې څخه محفوظ ده ،مخکینی دواړو ډلو (مشبهه وو او معتزله وو )په باب دامت علماء وایې، چې دا دواړه ګمراه او په غلطو لارو او نظریاتو روانې فرقې دي ،فرقه مشبهه د[لیس کمثله شئ ]له کریمه آیت څخه ګویا منکر دي او معتزله ګویا دمتشابهاتو له آیتونو څخه انکار کوي او دا څرګنده خبره ده چې له تنطیهي آیتونو څخه انکار ګمراهي ده او له متشابه آیتونو څخه انکار هم ګمراهي ده.

اهل حق هغه ډله ده چې دالله تعالی ټول هغه صفات چې په نصوصو کې ثابت دي مني، او له خپلې رأی او قیاس څخه پـه غیر دا صفات بې دچون وچرا څخه تسلیم کړي ،او دمعتزله وو په شان پکې تاویلات ونکړي ،ددې لپاره چې د(قدریه وو او معتزله وو ) غوندې پکې له الهي صفاتو څخه انکار رانشي ، هم پکې العیاذ بالله د(مجسمه وو او مشبهه وو ) غوندې الله تعالی ته اعضاء او جوارح ثابت نشي ،او نه پکې دمجسمه غوندې داسې وویل شي ،چې الله تعالی په عرش باندې (العیاذبالله ) دمخلوقاتو غوندې ناست دی ،بلکې په مجموع کې پدې آیت ایمان بسنه کوي، چې [الرحمن علی العرش استوی] یعنې (کمایلیق بشانه ) یا لکه په تفسیر قرطبي کې چې(علامه الوسي رح ) د امام اهل سنت والجماعت ( مالک بن انس رح) تشریح رانقل کړې، چې له آیت مبارکه سره داسې د ه: {الرَّحْمَنُ عَلَى الْعَرْشِ اسْتَوَى} [طه: 5] قال مالک: الاستواء غیر مجهول ، والكيف غیر معقول ، والإیمان به واجب ، والسؤال عنه بدعة ، الجامع لاحکام القرآن للقرطبي /ج/۱ص/۲۵۴ ) امام مالک رح دفوق الذکر آیت په تفسیر کې وایې ، چې استواء دالله تعالی په عرش مجهوله نده ،کیفیت بیانول ورته معقول ندي ، ایمان پرې هم واجب دی او سوال ترې بدعت دی .

دامام مالک رح دا قول په( اضواء البیان في القرآن بالقرآن ) تفسیر کې دنورو متشابهاتو سره یو ځای داسې نقل کړی:

ومما استحسن من إمام دار الهجرة مالک بن أنس أنه سئل عن قوله تعالی:{الرحمن عَلَى العرش استوى}[ طه: 5] فقال: الاستواء معلوم والكيف مجهول والسؤال عنه بدعة.

فلتجر آية الاستواء والمجيء وقوله: {لِمَا خَلَقْتُ بِيَدَيَّ} [ص: 75]، {وَيَبْقَى وَجْهُ رَبِّكَ} [الرحمان: 27]، وقوله {تَجْرِي بِأَعْيُنِنَا} [القمر: 14]. وما صح عن الرسول عليه السلام كخبر النزول وغيره على ما ذكرنا، فهذا بيان ما يجب لله تعالى. اه. ......

وكذلک أبو حامد الغزالي، كان في زمانه من أعظم القائلين بالتأويل ثم رجع عن ذلک، وبين أن الحق الذي لا شک فيه هو مذهب السلف. (اضواء البيان فی تفسير القرآن بالقرآن /ج۷/ص۲۸۲)

په فوق الذكر آيتونو كې الله جل جلاله ته دمذكورو صفاتو ثبوت واجب دی او پدې كې كوم شک او شا يبه نشته او بې ضرورته تاويلات پكې دسلفو له آندونو او ترجيحاتو خلاف دي، لكه په مذكور عبارت كې چې ذكر شول ،(امام غزالي رح) په خپله زمانه كې دتاويلاتو له لويو منونكيو او تاييدونكيو څخه و ،او له هغو خلكو څخه و، چې داسې صفاتو كې به يې تاويلات كول، چې بيا يې پايله كې يې لدې نظريې څخه رجوع وكړه او پدې ټينګ و دريد، چې دسلفو صالحينو مذهب او پدې باب ددوئ عقايد حق او پر حقيقت ولاړې دي او پدې كې كوم شک او شبه نشته.

نور غوره داده ،چې دالله تعالى په ټولو صفاتو عام ددې څخه چې ذاتي وي كه فعلي، داسې ايمان مسلمان ولري ،چې د خپل تاويل پر ځای پكې دسلفو صالحينو توجيهات او تاويلات په نظر كې ونيول شي او هم ددې نص (ليس كمثله شئ) څخه چې كوم تقديس او تنزيه ښكاري، دا هم په كمال فهم او درک سره په پام كې ونيول شي ،هم ددې عقيده موجوده وي، چې الله تعالى (سميع او بصير) دی ،خو كتل او اوريدل يې زمونږ په څير ندي او نه يې (يد) او (قدم) زمونږ غوندې دی.

دا (اهل حق) فرقه نه دمعتزله وو په شان ده، چې د نص دظاهري معنى په نفي كې دومره زياته غلو وكړي، چې دتعطيل تر حده پورې يې ورسوي ،او نه دمشبهه وو غوندې عقايد لري، چې دنص ظاهري معنى كې جمود راولي او تشبيه او تمثيل باندې ګروهمن شي، بلكې د(مولينا ادريس كاندهلوي) په آند ددې تعطيل ،تشبيه او تمثيل له منځه داسې شيدې راوباسي ،چې هم يې پخپله او هم يې پر نورو ښښونكيو وښښي ،چې دا د ټولو سلفو صالينو او ائمه اربعه وو عقيده ده ،لكه چې په (فقه اكبر) كې (امام اعظم رح) فرمايي :[فما ذكر الله فی القرآن من ذكر الوجه واليد والنفس والعين فهو له صفات ولا يقال ان يده قدرته ونعمته لان فيه ابطال الصفة و هو قول اهل القدر والاعتزال و لكن يده صفته بلا كيف انتهی ]ژباړه: يعنې چې قرآن كريم كې الله تعالى دوجه ،يد ،نفس او عين يادونه كړې، دا د ده صفات او دقدرت او نعمت په معنى يې ترجمه كول نا سم دي، ځكه دې ډول معنى سره دالله تعالى د صفت ابطال راځي او دا سې معنى ګانې كول دقدريه او معتزله وو نظريات دي ،بلكې د[يد]معنى يد دی، خو بلاكيفه.او همداسې دامام مالک رح ،امام شافعي رح ،احمد بن حنبل رح او داحاديثو له نورو امامانو څخه هم نقل شوي دي.

ديوه ضعيف البيان او قاصر اللسان انسان لپاره به ډيره سخته وي، د ذوالجلال ښښتن تعالى ذات ،صفات او ددې كمالات دې، داسې بيان كړي ،چې سمه او په تول پوره معنى دې يې ورته كړي وي ،دا كار يوه انسان ته من حيث الانسان مشكل دی ،بلكې هغه چې انسان يې كولای شي ،هغه دادي چې ممكناتو كې ،صفات په لوړه درجه وفهموي او بهتر يې وبولي ...............

نوربيا.........

# انتخابات تمام شد

## اما انتصابات ادامه دارد!!

(منقاد)

کشمکش های نتائج انتخابات رژیم کابل درین روزها درسراسر کشور و میان احزاب سیاسی بشدت ادامه دارد ملت بجان هم افتاده اند درشرایطیکه بهترین فرزندان کشور پشت میله های زندان هستند ، ومردمان متدین وجهادپرور در حبس غیر قانونی نیروهای نظامی خارجی وغلامان داخلی دستگاه قضا گردیده اند منابع ملی در بستر و زیر بستر در حال چپاول و غارت است. انتخابات بازي در افغانستان البته با عرض پوزش دقیقا چون گاوبازیست!! با حرکت درآوردن یک بیرق آن گاوخشم وغضب ملت را گهي به راست وگهي به چپ مي کشاند. واقعا این فروخته شده گان چه می خواهند وازملت چه چشمداشتی دارند زیرا می دانیم، که اینها کارگزاران غربیان واجنبیان هستند ، نه کارگزاران مردم نه نمایندگان مردم. از همین رو است، هرقدری که این نمایش را مطالعه نمایم، نتیجهٔ عملی آن همان است، که تا امروز شاهدش بوده ایم.

ملت شهید پرورما بجای شعارهای که «ماازرای خود دفاع میکنیم» باید «انتخابات انتصاباتی» و یا «انتصابات انتخاباتی» رژیم دزدان و جنایتکاران را فعالانه تحریم کنند «تحریم فعالانه» واین بدین معنی است، که در افشاگری همه جانبه و گسترده، در پرده برداشتن از سرتاپای این رژیم فاسد وجنایتکار فعالانه شعار بدهند.

کسانی که خود را مرد سیاست می دانند ومی پندارند که نقش بالایی در حکومت دارند وسرنوشت ملت را بدست میگیرند.آیاازعملکردهای سابقه شان خجالت نمی کشند ؟درجنب خود نیزهمچوافراد فاسد وجنایتکاران وخائینین ملی را گرفته عوام وملت را تحت نام مقدس جهاد فریب میدهند عوام که درطول اعصار فرصت آن را نیافته اند که از درد شکم به بیشترفکرکنند ، بستری خوبی برای رشد این ستمکاران وغاصبان بوده اند عوام طوری در ورطه ناآگاهی نگهداری شده اند که همه امور آنان برمبنی گفتار این ستمگران بوده است نه اینکه خود در مورد استقلالیت فکری وشناختی باوری ومنطقی داشته باشند. این مشکل فرصت خوبی را بدست اشغالگران ومتجاوزین و این مزدوران فاسد داخلی داده است تا ازمردم علیه مردم وازمردم ودین علیه دین استفادهٔ سوکرده به اریکه قدرت برسند.

شماشاهدهستید که درپهلوی عبدالله عبدالله کسانی قرار دارد که به جز ازچپاول گری و رهگیری قصر سازی ثروت پرستی وقتل ملت وچند تن گم راه تاریک نگر خود پرست متعصب مانند امرالله صالح که روزانه پنج بار اندیشه راه و فکرش تغیر میکند ، دیگرصفت نیکی ندارند. اگر عملکردهای سابقه ایشان را ورق بزنیم خوب درمی یابیم که بجزازنفاق همکاری باغربی ها ، سپردن لجام کشور بدست اجنبیان، پریشانی وآواره گی ، خانه سوزی کشتار،

جنگ و جفا ظلم ، چور و غارتگری در حق مردم کشور ارمغان دیگری ندارند... آرزو و سیاست همیشگی ایشان همین است.

این ها کسانی اند که گذشته ایشان مملو از رسوائی ویکدستی با اشغالگران درظلم وستم علیه فرزندان حق پرست جامعه وفروختن خون شهداء جامعه ودیگر اعمال زشت وناشایسته دربرابر جامعه بوده که یادآوری ازآن برایشان به بهاء سرافگندگی تمام میشود. این افراد میخواهند ازیکسو این گذشته نابکار خویش را کتمان نمایند از سوی دیگر بااغفال اذهان ملت وبرچشمان آنها خاک زده سرنوشت فردای ملت را نیز درقیمومت خود ویا خانوادهٔ خود داشته باشند. اما تاریخ بازگوی تجارب نیک وبد جامعه است، هرچند اگرافراد مغرض وجاه طلب به نفع مردم داران سیاه پیشه آن را جعل کنند ، بازهم فرزندان راستین جامعه کم نیستند که دربرملا ساختن چهره های ناروای این اشخاص فروخته شده باصداقت وراستی قلم بردارند وکردار سیاه ایشان را نسل به نسل نقل کنند.

شخص دیگری که میخواهد سرنوشت این ملت شهید پرور را بدست بگیرد داکتر اشرف غنی است که خانمش لبنانی الاصل تابعیت آلمانی دارد خودخانمش طی یک گفتگوی اختصاصی باشبکه اطلاع رسانی افغانستان به مسیحی بودن خود افتخار کرده میگوید « زنان افغانستان را نیز به گرویدن به دین مسحیت تشویق می کند.

رولا عبدالغنی در پاسخ به این سوال که آیا مسیحی بودن شما مشکلی برای ایفای نقش همسر ریاست جمهوری کشوری با ترکیب بیش از 99 درصد مسلمان ایجاد نخواهد کرد گفت: مسیحی بودن من جرم نیست اگر چه من از طرف مادری به نوعی یهودی محسوب می شوم.

وی اضافه کرد ، به اعتقاد من بانوان افغانستان تحت فشار به دین اسلام گرویده اند چون راه دومی نداشته اند. اگر آیین مسیحیت به خوبی برای آنان تشریح شود ، شک ندارم بیش از نیمی از آنان به این دین خواهند گروید.

خانم اشرف غنی احمدزی ادامه داد: من در طول ده سال گذشته از فعالیت برخی گروه های تبشیری مسیحیت در مناطق مرکزی، شمال و کابل به صورت غیر مستقیم حمایت هایی داشته ام. در صورت حضور در کاخ ریاست جمهوری به طور حتمی این کار را گسترش خواهم داد تا مردم افغانستان بدانند مسیحیت آن چیزی نیست که ملاها در مغز آنان وارد کرده اند. وی زنان افغانستان را به آزادی تشویق کرده گفت: آزادی زنان به قدری شیرینی خواهد داشت که به خودی خود ، موضوع مسیحی بودن من حل خواهد شد.

هموطنان عزیز ! به بینید او خودش شعار میدهد که بعد از کامیابی شوهرش درجامعه چه خدمت میکند شماخود شنیدید که تمام زنان ملت شهید پرور مارا به مسیحیت دعوت میدهد ومیکوشد که همه آینده ملت را مسیحی بسازد. مردم افغانستان باید آگاه باشند که غربی ها و اسرایلی ها ازگذشته های دور بالای اشرف غنی سرمایه گذاری نموده اند تا روزی اورا بر ملت ما حاکم سازند ، تا به واسطهٔ وی آرمان ها ، عزایم ودسایس شوم خودرا پیاده سازند. همین است که خانم نصرانیی یهودی اشرف غنی احمد زی به خود این حق را میدهد که بگوید: من زنان افغانستان را عیسوی می سازم. چنانچه سایت اسرایلی«بی اچ ورلد » در مقالهءتحت عنوان «ترس وامید» از اشرف غنی به توصیف پرداخته. «واورا گزینهٔ مناسبی برای احراز کرسی ریاست جمهوری افغانستان دانسته

وادامه می دهد که اشرف غنی تنها کسی است که عقب افتاده گی افغان هارا می تواند در عرصهٔ جهانی ترمیم کند.

هموطنان عزیز ! مقصود از ذکر اعمال این اشخاص وطن فروش اهانت به تاریخ وافتخارات کشور نیست، واین هویدا است که افغانستان زادگاه آزاد مردان که پرچم آزادی، مساوات، تمدن ودانش در دست داشته، بوده است. اما این هم غیرقابل انکار است که دربرابراین همه بزرگ مردان، رهبران وقمندانان مفسدوشریرداخلی وصحنه ساز برای خارجی هاواجنبیان کم نبوده است. آیااین همه شقاوت ونفاق وفساد وانداختن مردم کشور را بجان همدیگر بمناسبت سمتی، گروهی، قبیلوی، تعصبی ، نژادی، قومی واستفاده ازنام مقدس جهاد ، برای رسیدن به اریکه قدرت، ازدامن چه کسانی چکیده است؟ این ها هرگز درفکرآبروی ملت نبوده اند. اصل ملت است این همه مستبدین باگذشته نابود گرخویش به چشم ملت خاک میزنند تابه اهداف شوم خود رسیده کشور را به هرطرف که میل داشتند سوق بدهند.

این دوتن مزدوران که خودرا برای ریاست جمهوری لایق تصور میکنند ، خود بچنگال کفروالحاد ومتجاوزین افتاده اند وهمه شؤن اجتماعی شان را باغرب وملت های کفری وابسته احساس میکنند که ازخویش هیچ استقلالیت ندارند. این همه جنجال ها وانتخابات خاک زدن بچشم ملت است کشور ومردمیکه ازخوداستقلالیت نداشته باشند ولجام کشورشان بدست بیگانگان باشد پس انتخابات چه معنی دارد؟ بجزاینکه فقر ودرماندگی های فرهنگی واقتصادی امت اسلامی را بگدایان مبدل سازند وکاسه خالی اجتماعی را باید ازکندوی مفکوره های غربی پرسازند. درعین حال همه افغانها نگران اند وهمه می پرسند ، همه در دریائی وحشت وحیرت غرق شده اند که آخر برسراین صاحبان جاه وجلال طلب چه آمده است که بخاطر منافع سیاسی شان، نه بخاطر سربلندی اسلام چون کرمان گور بجان هم افتاده اند ، گروه گروه دربرابرخدا کمر بغاوت بسته اندآخر سرنوشت مبهم وتاریک ودور وفرو رفته درغل وزنجیر این ملت چه خواهد شد.

باید ضمیرملت غیور افغانستان اجازه ندهدکه فرزندان چنین جوی گندیده ومتعفن باشند ، باید عصیان کنند برآن کلاه برداران که قرآن را بحیث دام تزویراستعمال میکنند وبه تلاوت چند آیات آن خود را مسلمان معرفی میکنند همچو خانم اشرف غنی وباجلوه اسلام ومجاهد نمائی وشیخ الحدیثی همچوعبدالرب رسول سیاف بازیچه دست غربی هااند. باید عصیان نمایندبرهمه آن مجاهدنماهائی که برسر خون شهداء شان بادشمنان اسلام معامله گری میکنند. باید عصیان کنند برآن همه غلامان که درقبال چند دالرآبروی ملت را می فروشند. هموطنان عزیز ! باید هر فرد ملت مسلمان وغیور افغانستان متوجه نقشه های پلید و توطیئه های ویرانگر و تزویر ناجوانمردانه دشمنان خود یعنی آمریکا ، اسرائیل و روبای مکار(انگلس) باشند.

ازرب متعال تمنا دارم که دست نماینده گان فروخته شده گان خودپسند خود را از سرنوشت کشور مظلوم وشهید پرورما کوتاه سازد. وکمک نماید که ملت ما ازدست اشغالگران خارجی واین مزدوران داخلی آزاد گردیده خود صاحب سرنوشت و سعادت خود گردد.

از بس ستاره کشتید روی زمان سیاه است
هم این زمان ، هم آن زمان سیاه است
دست قلم شکستید ، پای سخن ببستید
ای روشنی ستیزان افکارتان سیاه است
میخانه ها ببستید ، بتخانه ها گشودید
با خون وضونمودید ، کردارتان سیاه است

## د صحت کمیسیون اداري مسؤل مولوي شرف الدین :

# د اشغالگرو د نورو دعووو غوندې د بشر د حقوقو دعوه هم یوازې د ځان لپاره ده او بل هیڅ چاته د بشر په نظر نه ګوري

درنو لوستونکو !

د اسلامي امارت په تشکیلاتو کې یو مهم بخش د صحت کمیسیون دی، دا کمیسیون چې د روغتیایي چارو اړوند خدمات ترسره کوي، د جهاد د زخمیانو د معالجې سربیره د مریضو بندیانو ، فلج شویو او معلولینو صحي خدمت هم کوي دغه راز د صحي پرسونل د روزلو لپاره تربیوي پروګرامونه هم لري.

بې له شکه د اوسني جهادي بهیر یو بوږنوونکی واقعیت دغو زخمي مجاهدینو حالت دی چې د مقدس جهاد په ډګر کې زخمیان کیږي، ځکه د زمان او مکان د سختو او تنګو شرایطو له امله داسې پوره زمینه نه ده برابره چې د زخمیانو کما حقه علاج او خدمت وشي، زخمیان چې تر ډاکټر او روغتون پورې رسول کیږي له خورا ډیرو مشکلاتو سره مخامخ کیږي، له بلې خوا د امکاناتو او روغتیایي خدماتو کمبود او امتحاني حالات ددې باعث کیږي چې زخمي مجاهدین خورا سختې صحنې وزغمي، خو له دې ټولو مشکلاتو سره سره د الله تعالی په فضل د افغانستان اسلامي امارت د خپلو هڅو په نتیجه کې د صحت کمیسیون تر چتر لاندې یو داسې سیستم جوړ کړی دی چې د زخمي مجاهدینو خدمت وکړي، د هغوی ژوند وژغوري ، د هغوی زخمونه پټی کړي او د خپل توان په اندازه د هغوی سره هره نوع صحي مرسته وکړي.

ددې لپاره چې د صحت کمیسیون د جوړښت او چارو په اړه مو معلومات اضافه شوي وي دا ځل مو ددې کمیسیون له اداري مسؤل مولوي شرف الدین صاحب سره مرکه کړې ده چې ستاسو پام ورته راجلبوو.

**پوښتنه**

محترم مولوي صاحب که له هرڅه وړاندې ځان رامعرفي کړئ او د خپلې وظیفې په اړه معلومات راکړئ ؟

**ځواب**

زما نوم مولوي شرف الدین دی ، د جوزجان ولایت اوسیدونکی یم او همدا اوس د اسلامي امارت په تشکیلاتو کې د صحت کمیسیون د اداري مسؤل په حیث وظیفه اجراء کوم.

**پوښتنه**

د صحت کمیسیون په اړه که معلومات را سره شریک کړئ، چې دا کمیسیون کوم تشکیلات او اداري برخې لري ؟

**ځواب**

د صحت کمیسیون د روغتیایي چارو په برخه کې د اسلامي امارت مؤظف کمیسیون دی، چې له لویه سره په څلورو برخو ویشل شوی دی، یوه اداري څانګه او درې د زخمیانو د معالجې ساحوي څانګې دي ، دغه راز د صحت

کميسيون دافغانستان د ټولو ولاياتو لپاره خپل تاکلي نمايندګان لري چې په اړوند ولايت کې دکميسيون نمايندګي او د چارو څارنه کوي ،د صحت کميسيون په تشکيلاتو کې همدارنګه د زخميانو د خدمت او انتقال لپاره مختلفې څانګې او کلينکونه دغه راز دوه روزنيز مراکز هم راځي چې روغتيايي پرسونل په کې روزل کيږي.

### پوښتنه

تاسو د صحت کميسيون مختلفو وظيفوي بخشونو ته اشاره وکړه که له هرڅه لومړی د زخميانو دعلاج په برخه رڼا واچوئ چې صحت کميسيون په دې برخه کې خپل کارڅرنګه پرمخ وړي ؟

### ځواب

تاسو ته بهتره معلومه ده چې له تيرو ديارلس کلونو راهيسې زموږ په هيواد کې دامريکايي او نورو غربي يرغلګرو په خلاف مقدس جهاد روان دی، په دې جنګ کې لکه څنګه چې ددښمن خوا ته درانه تلفات اوړي زموږ مجاهدين هم په کې په شهادت رسيږي او يا زخميان کيږي، د جهاد دهمدې زخميانو معالجه زموږ دکار مرکزي برخه ده، ددې لپاره موږ په مختلفو ولاياتو کې د اوليه طبي مرستو دتهيې لپاره روغتياپالان روزلي او ګمارلي دي، په جهادي سيمو کې موجود کلينکونه مو هم د تفاهم له مخې دې ته استخدام کړي چې د خپل توان په اندازه د زخمي مجاهدينو خدمت وکړي، په همدې بيړني علاج سربيره موږ د هغو زخميانو لپاره چې ډير زخميان وي هډونه يې مات شوي يا قطعه شوي وي داساسي علاج امکانات هم برابر کړي دي، په دې برخه کې موږ د ټول افغانستان د زخميانو د معالجې لپاره امکانات به کار اچولي دي، او دالله تعالی شکر اداء کوو چې له هرڅومره مشکلاتو سره سره يې موږ په خپلو هڅو کي بريالي کړي يو او تردې مهال توانيدلي يو چې په ډير ښه شکل دټولو زخمي مجاهدينو علاج وکړو.

په جهاد کي زخمي شوي مجاهدين هغه که هر ډول زخميان وي او هرڅومره مصرف چې پرې راځي موږ يې علاج ته اماده يو ، موږ په زخمي ترهغه وخته علاج کوو ترڅو چې جوړ شي، که کومو مجاهدينو اعضاء له لاسه ورکړي وي له علاج وروسته دهغوی لپاره مصنوعي اعضاء لکه مصنوعي پښې، سترګې او لاس هم برابروو ، دغه راز کوم بنديان چې د دښمن زندانونو څخه راخوشي کيږي موږ يې علاج کوو.

### پوښتنه

تاسو چې د زخميانو دمعالجې خبره وکړه نو دافغانستان جګړه خو يوه ستره جګړه ده او تقريبا په درست افغانستان کې روانه ده په دې لحاظ شايد د زخميانو تعداد هم زيات وي، او د زخمي مجاهدينو دعلاج کومه بله مرجع هم نشته نو تاسو په دې برخه کې څرنګه په خپلو کارونو رسيږئ، يا دومره مالي امکانات له کومه کوئ ؟

### ځواب

لکه تاسو چې اشاره وکړه رښتيا هم زموږ کار خورا دروند او حساس دی، نور کارونه که وځنډيږي يا تعطيل شي هم امکان يې شته مګر زموږ کار ځنډ يا تعطيل هم نه قبلوي ځکه دلته دمجاهدينو د ژوند ژغورلو مسئله وي او چې هرڅنګه وي موږ بايد د زخمي مجاهدينو ژوند وژغورو .

له همدې امله اسلامي امارت د بل هرکار په نسبت دې کار ته اولويت ورکړی دی، هرڅومره مالي امکانات چې په کار وي له هرڅه لومړی زموږ مالي اړتياوي پوره کوي ترڅو خدای مکړه د کوم زخمي ژوند له خطر سره مخ نه شي،تاسو پوهيږئ چې نن سبا د علاج مصارف، او درملو نرخونه خورا لوړ دي، په داسې حال چې موږ ته هيڅ دوا مفته نه حاصليږي ، د زخميانو د پانسمان ، عملياتو ، مصنوعي غړو او دعلاج اړوند ټول خه په پيسو کيږي، زموږ مالي مصارف خورا زيات دي، او دا داسې ضرورت دی چې بايد سمدستي اداء شي يعني ځنډ نه قبلوي، په همدې خاطر اسلامي امارت ټول تپ و تلاش کوي ترڅو د زخميانو دمعالجې جريان جاري

وساتي، په دې برخه کې اهل خیر مسلمانان هم له زموږ سره مرسته کوي خو بیا هم زموږ کار خورا حیاتي او ضروري دی اړتیاوې په کې خورا ډیرې دي، هغه څوک چې کولای شي په دې برخه کې له اسلامي امارت سره مرسته وکړي باید خپله مرسته ونه سپموي، دوی باید دغه عاجل ضرورتونه درک کړي، د زخمیانو له مشکلاتو ځان خبر کړي او خپلې مرستې ونه سپموي.

**پوښتنه**

د زخمیانو په معالجه سربیره تاسو د روغتیاپالانو د روزلو خبره وکړه که ددې تربیوي برخې په اړه معلومات راکړئ؟

**ځواب**

بلې، د صحت کمیسیون دوه تربیوي مراکز لري، چې په هره څلور میاشتنۍ دوره کې په هر مرکز کې د ۲۰ شاوخوا طبي کارکوونکو ته د مسلکي استادانو ډاکټرانو لخوا روزنه ورکول کیږي او بیا د خدمت لپاره جامعې ته وړاندې کیږي.

لومړی موږ د مختلفو ولایاتو له جهادي مسؤلینو څخه غوښتنه کوو چې خپل هغه مجاهدین چې د طبي زدکړو لپاره یې دوی مناسب بولي او په جهادي جبهاتو کې خدمت ته اماده وي، هغه دې موږ ته معرفي کړي ترڅو ورته طبي روزنه ورکړو، کله چې موږ ته کوم کسان معرفي شي، موږ په پیل کې یو ځل امتحان ترې اخلو تر څو ددوی استعداد ونه معلوم کړو کله چې په امتحان کې بریالي شي، بیا په تربیوي دوره کې داخلیږي او د استادانو لخوا ورته دخپل پروګرام سره سم درس ویل کیږي، په دې تربیوي دوره کې دوی ته هغه روغتیایي لارې چارې ښودل کیږي چې په جهادي جبهاتو کې ورته ډیره اړتیا وي، لکه د زخمیانو اولیه بیړنۍ مرستې، وینه بندول او پانسمان دغه راز د داخله امراضو د معالجې په اړه هم ضروري زده کړې ورکول کیږي، له څلورمیاشتنۍ دورې وروسته له دوی څخه امتحان اخیستل کیږي او بریالیو کسانو ته دفراغت اسناد ورکول کیږي، دغه راز کوم کسان چې خواهش ولري دکمیسیون مربوط روغتونونو یا د زخمیانو دخدمت په ځایونو کې ورته د عملي کار کولو زمینه هم برابریږي.

موږ چې کوم کسان تربیه کوو اکثره یې جهادي جبهاتو ته ځي، چې د دوی لخوا د زخمي مجاهدینو خدمت د ډیر قدرداني وړ دی، اما یوشمیر یې چې جهادي جبهاتو ته نه ځي او په خپله سیمه کې دیوه روغتیاپال په حیث د عامو مسلمانانو خدمت کوي ددوی کار هم موږ یوه لاسته راوړنه بولو، ځکه زموږ په هیواد کې د طبي کارکوونکو شمیر خورا لږ دی او اولس مو روغتیایي خدماتو ته ډیره زیاته اړتیا لري، نو د خپل مسلمان اولس د خدمت لپاره موږ خپله دا یوه لاس ته راوړنه بولو چې د دوی لپاره صحي کارکوونکي وروزو.

**پوښتنه**

امریکا، اروپایي حکومتونه او دامریکایانو لخوا ټاکل شوی افغان حکومت دعوه کوي چې دوی د بشرحقوقو ته درناوی لري، دوی د جینوا د میثاق غونډې د بشري حقوقو او د جګړې دمتاثرینو د دفاع اعلامیه منلي او امضاء کړي دي، تاسو چې د زخمیانو له نقل او علاج سره کار لرئ او وضعیت مو د سر په سترګو لیدلی دی، آیا دوی په خپلو دعواوو کې رښتیني دي او رښتیا د جګړې د متاثرینو حقوق په رسمیت پیژني؟

**ځواب**

باید ووایم چې د نورو دعواوو غونډې دا هم دغربي یرغلګرو او دهغوی دمحلي ملګرو یوه دروغجنه ادعاء ده، دوی یوازې د ځان لپاره بشري حقوق په رسمیت پیژني او بل هیڅ بشر ته دوی د بشر په نظر نه ګوري بلکې په اړه یې ډیر بې تفاوته او بې رحمه دي.

ددې په ځای چې دوی د زخمیانو په حالت رحم وکړي، مسلسل دا سې پیښیږي چې دوی زموږ زخمیان له علاج څخه راګرځولي، هغه یې په زخمي حالت کې زندان ته اچولي تردې

چې ټپونه یې خراب شوي یا یې اعضاء ناسم جوړ شوي دي، داسې هم ډیر پېښ شوي چې زخمیان یې په ډیره ظالمانه توګه په شهادت رسولي دي، د دوی د همدې ظلم او قساوت له امله زخمیان له ډیرو مشکلاتو سره مخامخ دي ، هغه مزل چې زخمیان یې په یوه ورځ کې وهلی شي او تر معالجې ځان رسولی شي اوس یې په ۷ یا ۸ ورځو کې په ډیرو سختو شرایطو کې په غرنیولاروو وهي، په داسې لارو چې مجاهدین په کې د موټر او امبولانس سهولت نلري، نو خپل زخمیان په شا یا هم په حیواناتو انتقالوي، چې له دې امله اکثره زخمیان له سختو دردونو او مشکلاتو سره مخامخ کیږي، حتی زخمیان د همدې اوږدو لارو او دوینې د ضیاع له امله په نیمه لاره په شهادت رسیږي، بله دا چې کله ناکله د جګړې په ساحه کې یو مجاهد زخمي شي، خو هغه د علاج لپاره ځکه له خپلې سیمې نه شي تللی چې په لاره د دښمن لخوا د تازه زخمونو له امله پیژندل کیږي، نو مجاهد په خپله سیمه کې صبر کوي تر څو یې زخمونه یو څه ښه شي او بیا د اساسي علاج هڅه کوي ، خو په داسې حالت کې چې کله معالج ډاکټر ته خپل زخمونه ښیي نو ډیر ځله یې هډوکي کاږه او ناسم جوړ شوي وي، چې دنوموړي د معیوبیت خطر تر ټولو ډیرولی پیښیږي په داسې حال کې ډاکټر مجبور وي چې دنوموړي د اساسي علاج په خاطر یې جوړ شوی هډ بیرته مات کړي او له سره یې سم پیوند کړي، چې په دې توګه په زخمي باندې تکلیف بیرته له سره شروع کیږي او د یوه زخم له امله دوه ځله دردونه ورباندې تیریږي.

چې دا او دې ته ورته نور ټول مشکلات له همدې امله دي چې زموږ دښمن زموږ د زخمیانو په وړاندې له ډیر غیر انساني او ظالمانه چلند څخه استفاده کوي، د دوی په ظاهري خبرو او تبلغیاتو باید باور ونه شي که نړیوال او هیوادوال د دوی اصلي څیره پیژندل غواړي باید د غسې له قساوت ډک اعمال یې وارزوي.

**پوښتنه**

داسې هم ویل کیږي چې د دښمن لخوا په جګړه کې له زهري او کیمیاوي وسلو څخه استفاده کیږي، تاسو چې زخمیان مو له نږدې لیدلي دي آیا د داسې څه اثرات مو کله لیدلي دي؟

**ځواب**

هو، داسې بد اثرات بیا بیا په زخمیانو کې تر سترګو شوي چې د ډاکټرانو په باور د دښمن لخوا په جګړه کې د زهري موادو استعمال یې لامل بلل کیږي، مثلا یو شکایت چې ځیني زخمیان یې لري دا دی چې ځیني زخمیان له ټپي کیدلو وروسته د پوستکي په پیس مرض مبتلا کیږي چې بیا یې علاج نه کیږي، ډاکټر وایي چې د دې علت همدا د دښمن لخوا کاریدونکي زهري مواد دي، داسې هم ډیر پیښ شوي چې ځیني زخمیان چې دیر غلګرو په مرمیو لګیدلي یا یې د بمونو پرڅچې پر بدن سرېښ شوي، زخمونه یې نه جوړیږي، له علاج وروسته یې د لنډ وخت لپاره زخمونه روغ شي خو څه موده وروسته یې زخم بیا وشړیږي، داسې پیښې که څه هم کمې دي خو د اندیښنې وړ دي، چې پلټنه او پوښتنه یې باید وشي او د دښمن د دې جنګي جنایت سپیناوی وشي.

**پوښتنه**

خپلو مسلمانانو ورونو ، نړیوالو خیریه ټولنو او هغوی چې د بشر د حقوقو دعوا لري ستاسو پیغام ورته څه دی ؟

**ځواب**

خپل مسلمان ملت او مؤمن افغان اولس ته مو پیغام دا دی چې دغه زخمي ورونه چې د اسلامي امارت د صحت کمیسیون یې خدمت کوي، دوی هغه فداکار ځوانان دي چې خپله روغتیا ، خپل اعضاء او خپل خوږ ژوند یې د اسلام د خدمت په لاره کې قربان کړی دی، د اسلام له رویه ټول مسلمانان سره ورونه او یو جسد دي چې د هر مسلمان درد باید بل مسلمان په خپل ځان باندې حس کړي، نو د دې زخمیانو درد باید هر مسلمان خپل درد وبولي، د دوی له مشکلاتو ځان خبر کړي او په هرځای او هر وخت کې ورسره

همکاري او خواخوږي وکړي، د زخميانو د علاج ، خدمت او دهغوی د ژوند ژغورلو او سهولت په برخه کي يي چې څومره همکاري په وس پوره وي بايد وبي نه سپموي، ځکه همدا په هر مسلمان باندې د اسلام ددې اتلو او فداکارو زامنو ديني حق دی.

هغه کورنۍ او مؤمن وروڼه چې خپل قريبان يې د الله تعالی د دين د ساتنې په لار کې قربان شوي، زخميان شوي، معلول شوي يا يي اعضاء له لاسه ورکړي دي مونږ ورته ددې ستر امتياز د حاصلولو او فداکارۍ د اداء کولو مبارکي وايو ځکه دوی اصلي وراثت ګټلی دی چې پر دين باندې زخميان شوي دي ځکه چې زموږ ستر او خوږ پيغمبر عليه السلام پر دې دين زخمي شوی او ملګري يي زخميان شوي دي موږ د بدر، احد، خندق او نورو ټولو غزواتو په اړه مثالونه لرو چې صحابه کرام په همدې دين زخميان شوي دي اعضاء يي له لاسه ورکړي دي دا مقام هرچاته نه رسيږي

**...ددوی د نورو دعواوو غوندې دا هم يوه دروغجنه ادعاء ده چې ګواکې دبشر حقوقو مراعت کوو، دوی يوازې د ځان لپاره بشري حقوق په رسميت پيژني او بل هيڅ بشر ته دوی د بشر په نظر نه ګوري بلکې په اړه يې ډير بې تفاوته او بې رحمه دي.**
**ددې په ځای چې دوی د زخميانو په حالت رحم وکړي، مسلسل داسې پيښيږي چې دوی زموږ زخميان له علاج څخه راګرځولي، هغه يي په زخمي حالت کې زندان ته اچولي تر دې چې ټپونه يي خراب شوي يا يي اعضاء ناسم جوړ شوي دی، داسې هم ډير پيښ شوي چې زخميان يي په ډيره ظالمانه توګه په شهادت رسولي دي**

ددې قربانيو په قدر يوازې الله تعالی پوهيږي او واقعي بدله يې هم يوازې الله تعالی ورکولای شي د بل چا توان نسته ، د اسلامي امارت د صحت اداره په همدې بخش کې ديوې مسؤلې ادارې په حيث د دوی خدمت خپله دنده بولي د هغو طبي خدمتونه يي بار بار کړي دي او په آينده کي هم ورته پوره تياری لري.

موږ د زخميانو ورثه وو ته دا پيغام لرو چې دوی هم بايد دخپلو محتاجو او معلولو قريبانو په خدمت کې ستړې نه شي، بايد د خپلو محتاجو قريبانو ډير خيال وساتي د الله تعالی په قضاء راضي وا وسيږي خپل زخميان وروڼه چې د اسلام او قرآن به ننګ يي شيرين اعضاء له لاسه ورکړي بايد مايوسه يي نه کړي او خاص د الله تعالی د رضاء د حصول په خاطر يي ډير زړه وساتي.

دغه رازمو نړيوالو ټولنو او دبشر حقوقو دعوا کونکو ته پيغام دا دی چې دوي چي دبشر دحقوقو او انسانيت په باب چي کوم شعار ورکوي يا يي کوم اصول وضع کړي دي هغه بايد داسي عملي کړي لکه څنګه چې ددوي اصول او د انسانيت اړتيا او غوښتنه ده بلا تفاوته مرستي وکړي يعنی د چا تر فشار او تاثير لاندې نه وي د افغانستان مظلوم ملت سره بايد هراړخيزه مرسته وکړي خصوصاً د زخميانو او معيوبينو او فلج مريضانو سره مرستي وکړي. له امريکه او متحدينو سره د ملګرتيا او د هغوی تر قومنده لاندې دکارکولو تور داغ له خپلو ټولنو او سازمانونو لري کړي.

**پوښتنه**

او په پای کې دهغو کورنيو ته چې خپل اولادونه يي د جهاد په لاره کې زخميان يا معلول شوي دي خپل پيغام که راته ووايئ مهرباني به مو وي ؟

**ځواب**

# فتحې او لاسته راوړنې

زخمي افغان

د الله تعالی دفضل او نصرت په برکت په دې وروستيو کې له جهادي ډګر څخه دداسې بريالیو فتوحاتو او لاسته راوړنو خبرونه اوريدل کيږي چې هره پيښه يې په لويه خوشالۍ او دالله تعالی په دربار کې د شکر په سجدو ارزي.

هغه مجاهدين چې يو وخت د زوال له خطر سره مخامخ و او دښمنانو يې د بقاء احتمال نفي کاوو اوس په نړيواله او محلي کچه د لويو جهادي او سياسي فتوحاتو وياړونه ترلاسه کوي.

داچې د جهادي فتوحاتو ددې بهير په مقابل کې دښمن مطلق اعلامي سانسور اعلان کړی دی ترڅو د جهادي بريا وو له بشاراتو مسلمانان خبر نه شي د خپل اولس د خبرتيا په خاطر په لاندينيو کرښو کې د مجاهدينو څو ښکاره فتوحاتو ، دجهادي خوځښت لاسته راوړنو او نورو بشاراتو ته اشاره کوو چې په تيرو څو اونيو کې يې مونږ شاهد پاته شوي يو.

د روان قمري کال د رجب په ۲۹ نيټه رسنيو خبر ورکړ چې په روزګان ولايت کې دامريکا د ستر قراردادي او ظالم قومندان حکيم شجاعي ټغر په بشپړ ډول له دې سيمې څخه ټول شو ، حکيم شجاعي يو هزاره ټوپکمار وو چې سلګونه وسلوال يې درلودل نومړی دامريکايانو يو مرتزقه جګړه مار و چې له تيرو څو کلونو راهيسې يې د غزني او روزګان په ولايتونو کې د اشغالګرو لپاره ظالمانه دنده اجراء کوله ، نومړی د خپل ظلم له امله ډير مشهور و چې د روزګان

لسګونه ولسي خلک يې شهيدان، کورونه يې ورو سوزول او بيا بيا يې د سيمې په خلکو سخت ظلمونه سرته رسول، نومړي په روزګان کې لسګونه پوستې درلودلې او امريکايانو ته دومره قريب و چې حتی د کابل دحکومت هم پرې زور نه رسيده ترڅو يې له جناياتو راوګرځوي، خو دمتعال خدای په فضل په وروستيو کې د نومړي په وړاندې د مجاهدينو بريدونه او ولسي نفرت اوج ته ورسيد ، له تدريجي زوال وروسته يې په ياده نيټه ټول وسلوال له پوستو وتښتيدل ، ځينې د خلکو لخوا خلع سلاح او ونيول شول او په بشپړه توګه يې کيسه ختمه شوه.

د روان ميلادي کال د مې په ۳۱ مه نيټه له امريکايي حکومت سره د يوې تبادلې په نتيجه کې د اسلامي امارت پنځه تنه لوړپوړي چارواکي ، هريو د شمال زون تنظيمه رئيس او دبلخ والي ملا نورالله نوري ، د کورنيو چارو پخواني وزير او دهرات والي ملا خيرالله خيرخوا ، د استخباراتو دلوی رياست مرستيال ملا عبدالحق وثيق ، د اسلامي امارت لوی درستيز ملا محمد فاضل مظلوم او د سرحدي لوا قومندان مولوي محمدنبي عمري صاحب دګوانتانامو له بدنام زندان څخه راخوشي شول، ددغو لوړپوړو مجاهدينو راخلاصيدل بې له شکه د اسلامي امارت يوه ستره بريا وه چې په نړيواله کچه يې پراخ خبري انعکاس درلود او د مسلمانانو زړونه وربانديې خوشاله شول،ددې بنديانو د راخلاصيدو په مقابل کې مجاهدينو د بوبرګډال په

نامه هغه امریکایي عسکر هم امریکایانو ته وسپاره چې څو کاله وړاندې د پکتیکا په ولایت کې نیول شوی و.

د روان میلادي کال د جون په ۳ مه نیټه امریکایانو دافغانستان او سیمې د پوځي اډو دتخلیې په بهیر کې په منځنۍ اسیا کې له خپلې سترې اډې مناس څخه هم وتښتیدل، مناس پوځي اډه چې امریکایانو ترې کار اخیست په قرغزستان هیواد کې وه، یوه لسیزه وړاندې امریکایانو په دې سیمه کې ددې لپاره اړولې وه ترڅو د خپل نړیوال اشغالي پلان په تطبیق کې له دې اډې څخه د منځنۍ اسیا او شاوخوا سیمې دکنترول لپاره استفاده وکړي ، مګر دا چې په افغانستان کې امریکایي خوبونو سرچپه تعبیر ورکړ او ارزوګاني یې له خاورو سره خاورې شوې بالاخره دافغانستان په څیر له دې اډې هم وتښتیدل، ددې پیښې په مهال ځینو فیسبوک کاروونکو ولیکل چې ( طالبانو دمناس هوایي اډه فتحه کړه ) ددوی اشاره دې ته وه چې له مناس څخه دامریکایانو تیښته دافغانستان دجهاد برکت دی، او دفتحې ویاړ یې دطالبانو دی چې په خپلو قربانیو یې په سیمه امریکایي یرغل مات او داشغالګرو اوږده پلانونه یې شنډ کړل.

د جون میاشتې په نهمه شپه ۴ تنو فدایي مجاهدینو دننګرهار ولایت جلال اباد ښار ته نږدې دامریکایي اکمالاتو او انتقالاتو په یوه موټریزه اډه بریدوکړ چې په نتیجه کې یې دامریکایانو ۱۱۳ ټیلر موټر چې شاوخو ۲۰۰ نقلیه وسایط په کې بارو، وسوزیدل او له منځه لاړل ، په همدې ورځ یو بل فاتحانه زیری دا و چې مجاهدینو د روزګان په چارچینو کې ددښمن ۸ پوستې فتحه کړې او پراخه سیمه یې ددښمن له شتون څخه پاکه کړه.

په نړیواله کچه د جهادي بریاوو یو ترټولو خوشالوونکی زیری د جون میاشتې په ۱۰ نیټه دمسلمانانو غوږونو ته ورسید ، په همدې نیټه رسنیو وویل چې په عراق کې د دولة الاسلامي فی العراق والشام په مشری سني ولسي پاڅون کوونکو له الانبار ایالت څخه وروسته نینوا ایالت هم په بشپړه توګه نیولی او ددې ولایت مرکز موصل ښار چې له بغداد وروسته دعراق دوهم ستر او مهم ښار دی تر خپل کنترول لاندې یې راوستی دی، د عراقي ولسي مجاهدینو دا ستره بریا په درسته نړۍ کې دمسلمانانو تر منځ د یوه هیښوونکي بشارت په حیث خپره شوه او وروسته چې دعراقي ولسي پاڅون دفتحو بهیر تر تکریت، القائم اوحتی دبغداد تر دروازو ورسید ، په نړیواله کچه یې داسلام دښمنان سخت غمجن او دمسلمانانو زړونه خوشاله کړل، د عراقي مجاهدینو فتوحاتو په درسته نړۍ کې مجاهدو او مبارزو مسلمانانو ته نوې روحیه ورکړه او دکفر په وړاندې دمبارزې روحیه او تعهد یې لا مضبوط کړ.

د جون میاشتې څوارلسمه نیټه په هیواد کې یوه بله د فتحو او حماسو ورځ وه ، په دې ورځ چې په افغانستان کې دولسمشرۍ د ټاکنو دوهم پړاو ترسره کیده، مجاهدینو هم د وړاندینۍ امادګۍ له امله له سهار څخه په درست افغانستان کې په دشمن باندې بریدونه پیل کړل چې ټوله ورځ یې په ډیر قوت سره جریان درلود.

ددې ورځې په پای کې داسلامي امارت ویاند ښاغلي ذبیح الله مجاهد په خپله اعلامیه کې وویل: د خیبر عملیاتو په جریان کې نن ورځ له سهاره تر ماښام پورې د اسلامي امارت د سرسپارلو مجاهدینو لخوا په ټول هیواد کې د امریکایي فرمایشي ډرامې انتخاباتو په جعلي پروسه پراخ تعرضي بریدونه ترسره شول، په دغو بریدونو کې د دښمن امنیتي مراکز، انتخاباتي مرکزونه، د کابل اداري د مزدورو عسکرو او پولیسو د تګ راتګ قطارونه او د دښمن د تجمعاتو ځایونه تر کارنده ګوزارونو لاندې ونیول شول په ټول هیواد کې د بریدونو مجموعي شمیر(۸۲۸) ته رسیږي چې د ولایاتو په لحاظ یې شمیر په لاندې ډول ده.

| | |
|---|---|
| ننګرهار: (۱۰۷) | کنړ: (۲۲) |
| کندز: (۵۵) | لوګر: (۵۵) |
| غزني: (۴۴) | پروان: (۴۲) |
| زابل: (۴۰) | لغمان: (۳۸) |

| | |
|---|---|
| پکتیا: (۳۲) | پکتیکا: (۳۰) |
| نورستان: (۲۹) | خوست: (۲۷) |
| بغلان: (۲۴) | کابل: (۲۴) |
| میدان وردګ: (۲۳) | فاریاب: (۲۲) |
| کاپیسا: (۲۱) | هرات (۲۰) |
| هلمند: (۱۹) | ارزګان: (۱۲) |
| غازي آباد: (۱۵) | فراه: (۱۴) |
| کندهار: (۱۳) | بلخ: (۱۳) |
| غور: (۱۳) | جوزجان: (۱۳) |
| بدخشان: (۱۲) | بادغیس: (۱۲) |
| سرپل: (۹) | سمنګان: (۸) |
| بامیان: (۴) | نیمروز: (۳) |
| تخار: (۲) | پنجشیر: (۱) |

د انتخاباتو لـه تیریـدو وروسـتـه د جـون پـه ۱۸مـه نیټـه دغور ولایت مجاهدینو ددې ولایت په پسابند ولسوالۍ کې د یـولړ پراخـو عملیـاتو پـه ترسره کولـو سره سـترې بریـاوې ترلاسه کړې ، پـه همدې ورځ مجاهدینو د ۲۴ ساعتـه جګړې پـه پایلـه کې ددښمن ۱۲ پوسـتې فتحـه کـړې او ددښـمن عسـکر او اربکیـان یـي لـه سیمې وشـړل ، دعملیـاتو پـه نتیجـه کې مجاهدینو ۱ ټانـک ، پنځـه عـرادې رینجر موټر ۴۰ عـرادې موټرسـایکل یـو میـل دهشکه یـو میـل هـاوان ۳۰ میله کلاشینکوفونه او ۴۰ صندوقونه مرمۍ هم غنیمت کړې چې دا بریا د غور ولایت په اوسني جهادي تاریخ کې یوه ستره بریا بلل کیږي.



د غـور د بریـا پـه سبا دریـو تنـو فـدایي مجاهـدینو د ننګرهار ولایت په سرحدي ښارګوټي تورخم کې د امریکایـانو په یوه اکمالاتي او د وسایطو د تجمع په اډه باندې برید وکړ، چې د رسته ورځ جنګ جریان درلود ، په دې جګړه کې هم دښمن ته د سر ددرانه زیان په اوښتو سربیره د دښمن ۱۱۹ اکمالاتي ټیلر موټر او ۹۲ پوځي ټانګونه چې امریکایانو افغانستان ته د جګړې د پرمخ بیولو لپاره راوستي وو په بشپړه توګه داور خوراک شول او له منځه لاړل.

د فتحو او بریاوو د ددې لړۍ وروستي عملیات د جون میاشتې په ۲۱ مه نیټه د هلمند ولایت د سنګین په ښاروان کلا سیمه کې وه ، دا سیمه چې د هلمند په سطحه یوه ستراتیژیکه سیمه بلل کیږي او تیر کال هم د سختو جګړو شاهده وه سږ یوځل بیا د مجاهدینو او دښمن ترمنځ د تودو معرکو ډګر دی ، د جون د یوویشتمې په عملیاتو کې ددښمن ۷ پوستې مجاهدینو فتحه کړې تر ۲۵ ډیر ددښمن عسکر ووژل شول او ګڼ نور له خپلو وسلو سره ژوندي ونیول شول.

لوړ یاد شوي موارد د جهادي فتوحاتو هغه پیښې وې چې رسنیو وربانـدې خوله پټـه ساتلې ده او پـه ښـکاره د مجاهدینو د قوت او ددښمن دضعف او اضمحلال دلالتونه له ځانه سره لري.

د فتوحـاتو لـه دې بهیـر څخـه ښـکاري چې لله الحمد مجاهدینو په خورا ښه موقف کې دي او دښمن یي پـه هرډګر کې لـه سختې وارخطایي او شکست سره مخ کړی دی ، الله تعالی ته امید لرو چې دفتحو دا تسلسل بـه همداسې جاري پاته شي او د اسلام دښمنان بـه د حق دلښکریانو په مقابل کې په نهایي شکست محکوم شي .وماذالک علی الله بعزیز

# دکابل ټکسي چلوونکي غله!




نظرمحمد م

زموږ او ستاسي اکثره میلمانه له ولایتونو او اطرافو څخه راځي، چې د غلو له خوا يې جيبونه وهل کيږي. له همدې امله ليکنه بيا ستاسي سره شريکوم چې له نورو ملګرو سره يې هم شريکه کړئ او له اطراف څخه راتلونکي افغانان د غلو له يو مخيزې غلا څخه لږ تر لږه خبر وي. له حکومت څخه هسي هم د دي توقع نه کيږي.

حاجي اسدالله د هلمند ولايت د نادعلي ولسوالي د چانجير او سيدونکی وايي چې په يخ ژمي کي کابل ته راغلي وم، دوه زره اوم کال وو، کله چي بيرته تلم، دا چي د کندهار ۳۰۳ موټربسونه د شپي له خوا حرکت کاوو، د شپې پر دوه بجي د کوربه له کور څخه راووتم، ټکسي مي پيدا کړ، دوه تنه نور هم د ټکسي موټر په شاتنۍ چوکۍ کي ناست وو، چلوونکي وويل چي کاکا کجا ميري؟ ورته مي وويل چې د کندهار اډي ته ځم، هغه راته وويل چي: بالاشو، ما هم اده کندهار ميرم، خبره مي د کرايې ورته وکړه، ويې ويل چي: فرق نميکند هرچيزي که دادي صحيح است.

ټکسي په سړه هوا کې د کندهار اډي پرلور حرکت وکړ، لږځنډ وروسته د عمومي سړک څخه بل فرعي سړک ته واوښت، ويې ويل چي دلته نږدي په دي بله کوڅه کي يو بل مسافر هم کندهار اډي ته ځي وعده مي ورسره کړي ده هغه به هم راواخلو، د شاکسانو سمدستي وويل چي: برو ما هم مسلمان هستم، خيراست او بيچاره هم بالا ميکنيم.

ټکسي موټر يې په توره شپه کي يوي کوڅي ته ورد ننه کړ، په کوڅه ور د ننه کيدو سره سم د شاکسانو زما په غاړه کي دستمال راواچاوو، يوه تومانچه راباندي ونيوله او بل چاقو راباندي راوکيښ.

ژر ژر يې زما جيبونه تلاشي کړل، راسره پيسي يې ګرده راڅخه واخيستلي، هغه بکس چي دکور د غړو له پاره مي تحفي اخستي وي او زما سامان پکښي وو هغه يې هم راڅخه يوور، او له موټر څخه يې کښته کړم، څو لغتي يې هم ووهلم، ويل يې چي حال اده کندهار برو.

حاجي اسدالله ډير ځيرک سړی دی وايي زما د وهلو پروخت مي د دغو شاته کسانو څيرو ته ښه په ځيرځير وکتل، ډيره موده وروسته بيا ځل کابل ته راغلم، په جاده کي روان وم چي همهغه دوه نفره مي ترسترګو شول، زه هم په دوی پسي روان شوم، او ځان مي ناګمانه واچاوو، دواړه کسان په جاده کي يوي پوستي ته ننوتل، دا چي زه هم پخواني صاحب منصب وم، په ډاډ سره پوستي ته ورپسي ننوتلم، هلته مي د پوستي د مشر پوښتنه وکړه، له روغبړ وروسته مي ورته وويل چي دلته دوه نفر ستاسي پوستي ته راغلل څو مياشتي مخکي يې زما څخه د شپي له خوا پيسي غلا کړي، اوس مي وليدل او دادي تاسي ته مي خپل عرض وړاندي کړ.

د پوستي قومندان وويل چي شاهدان لري چي ستا څخه يې غلا وکړه، ومي ويل چي شپه وه او دوی ټول ملګري وو، قومندان وويل چي که شاهدان لري ښه خبره ده او که نه




## هلال

**أخترمحمد بهار مستغفر**

پـر سـر د تربـو مـو سـپین مشـال وهلـی دی
ککـرو د پـردو نـه مـو دیـوال وهلـی دی

عجبـه ایمـاني ګـوزار یـي بیـا وخـوړ ملګـرو
پـر تـور تنـدي مـو مخـامخ دجـال وهلـی د ی

دا ګزا ودا میدان دوی دې روغ ولاړ شي لدې کلي
لـه تـار د استشـهاد مـو ورتـه جـال وهلـی دی

لا نور به هم خوتیږي ددې مستو ماغزه سر کې
دوی اور تـه دکسـات د اوبـو خیـال وهلـی دی

صلیب شو دړې وړې او نړې کې یي مخ تور شو
پـه تـوره د توحیـد بانـدې هـلال وهلـی دی

زلمـي د مسـتغفر بهـار د کلـي خـو ګـلان دي
خـزان یـي پـه ښـکلا پـه څـه کمـال وهلـی دی

## راخلاصو شویو اتلانو ته !

**نظام کندهاري**

سـتا چـي لاسـو کـي هتکـړې پرتـې وې
زمـونږ پـه زړونـو کـي سـلګۍ پرتـې وې

تـه چـي وې ناسـت د پنجـرو پـه زړه کـي
نښـي د ویـر پـر دنیـاګۍ پرتـې وې

پـه نـارنجي لبـاس کـي ښـل شـوې رانـه
سـر پـه ژړا تـوري پګـړې پرتـې وې

نـه یـې ګنـاه نـه یـې تعـدا وه ربـه
پـه قفسـو کـي تـوتکۍ پرتـې وې

سـتا د دیـدن او د راتلـو پـر لاره
د امیـدونو مـو کیـږدۍ پرتـې وې

مـونږ هـم پـه وینـو لاري و مینځلـې
څکـه پخـوا لا خـونړۍ پرتـې وې

دا مـو دی ستا سـو انتقـام اخیسـتی
هلتـه چـي مـاتي ککـرۍ پرتـې وې

نظامـه تېـره شـول ناترسـه سـېلۍ
پـر سـرو اغزیـو ګـل غـوټۍ پرتـې وې

## غلیم ته

حافظ محمد قاسم زهیب

که دې دا یاد و بیابه ونکړې یرغل غلیمه
دا ګوزارونه د بغداد او د کابل غلیمه

دا دلندن او واشنګټن په خیر نامرده نه دي
دلته هر ځوان دی د خالد غوندی اتل غلیمه

د غه ولس له (آی مس یو) سره نه دی اشنا
هر یو په لاس کې ذوالفقار سپور په دلدل غلیمه

ابودجانه غوندې مورې چې جنګ ډګر ته درومو
بیاله سرونه بګړې تاو کړو ول په ول غلیمه

لکه (د ګر بډې) څوک روغ درپاتې شوي ندي
څوک دې ړانده او څوک کاڼه او څوک دې شل غلیمه

د عیاشۍ او فحاشۍ ځایونه نور دي ګوره
د اسیازړه کې دې راغلی ؤ اجل غلیمه

چې بارودي واسکټ په تن کړي فدایي جانان مې
په خپلو غوښو کړي سور اوردرباندې بل غلیمه

ته هالیووډ، اوبالیووډ، ګوره (ګرل فرینډ) سره دې
مورې مینان یو د سنګر او د مورچل غلیمه

دا کلیسا او سینما په مورې تپلی نشې
مورې د فکری جګړې زده کړې دی هر چل غلیمه

دا د صلیب او د هلال ترمنځ اورېده جګړ کې
فتحې له ربه (زهیب) غواړی پل په پل غلیمه

## امید

(حافظ شیرازی)

یوسف گم گشته باز آید به کنعان غم مخور
کلبه احزان شود روزی گلستان غم مخور

ای دل غمدیده حالت به شود دل بد نکن
وین سر شوریده باز آید به سامان غم مخور

دور گردون گر دو روزی بر مراد ما نرفت
دایما یکسان نباشد حال دوران غم مخور

گر بهار عمر باشد باز بر تخت چمن
چتر گل در کشی ای مرغ خوشخوان غم مخور

ای دل ار سیل فنا بنیاد هستی برکند
چون تو را نوح است کشتی بان غم مخور

هان مشو نومید چون واقف نیی از سر غیب
باشد اندر پرده بازی های پنهان غم مخور

در بیابان گر به شوق کعبه خواهی زد قدم
سرزنشها گر کند خار مغیلان غم مخور

گر چه منزل بس خطرناک است و مقصد بس بعید
هیچ راهی نیست کان را نیست پایان غم مخور

حال ما در فرقت جانان و ابرام رقیب
جمله می داند خدای حال گردان غم مخور

حافظا در کنج فقر و خلوت شبهای تار
تا بود وردت دعا و درس قرآن غم مخور

وي او خپله خبره دي ثبوت نه کړه بيا به تاته هم جزا درکول کيږي، څو نوري خبري يې هم دا ډول وکړي، چي هرڅوک راشي زما څخه غلا شوي او بيا شاهد هم نه شي حاضرولای، برو ګم شو.

زما بل ملګري وايې چي د خوشحال خان مېنې څخه ووتم او د سيلو پرسړک ودريدلم، غوښتل مي چي ده افغانانو ته ولاړشم، يو ټکسي موټر سرا غونه روشانه کړل او زما لورته رانږدې شو، ودريدی، ويې ويل کجا ميري، ومي ويل چي ښار ميرم، ويې ويل بالاشو.

د ټکسي د شا دروازه چي مي خلاصوله قيدونه يې وهل شوي وو او نه خلاصيدله، مخکي يو نفر ناست وو، هغه وويل چي مخته راشه، شاته نفرمريض لري، همدلته زما سره کښينه.

کله چي په مخکي چوکۍ کي کښيناستلم، داچي په کابل کي په مخکنۍ چوکۍ کي دوه نفره کښينوي، نو هغه بل نفر چي ځوان وو او د غټ بدن لرونکی وو، زما پرغاړه يې خپل چپ لاس واړاوو، ويې ويل چي اجازه ده زه به لاس واړم، ځکه تنګ ناست يو دا ډول به لږ هوسا کښينو، موټر حرکت وکړ، دغه د مخکنۍ چوکۍ نفر وويل چي دروازه دي سمه نه ده بنده کړي، ماچي دروازه خلاصه کړه، البته سړی ښوري او د دروازي څخه مي نورهم ځان د هغه سپاري خواته راټول کړ. دروازه مي بيرته وتړله، د موټر چلوونکی هيڅ زموږ خواته نه کتل او نه يې خبري کولي، او دغه نفر چي په مخکي ناست دی، خپلي کيسي يې هم راسره کولي چي د هجرت وخت کي چيرته واست؟ د پېښور په کيسو يې يوځای زما ذهن مشغول کړ او د دروازي په خلاصولو او بندولو يې بل ځای زما ټوله توجه او پام اړولی وو، بل داچي دغه ځوان په پښتو خبري کولي او په زړه پوري جملي يې کارولي، بيا يې وويل چي دروازه سمه نه ده بنده، ما دروازه خلاصه کړه او نور هم دده لورته نږدې شوم، په کړس سره مي داخل دروازه بنده کړه، په دغه وخت کي د پولي تخنيک د هغې دروازي برابري ته ورسيدو چي د لويې جرګي د خيمي لاره ده.

کله چي د باغ بالا لوړځای ته ورسيدو هلته دغه پښتون ځوان پوښتنه وکړه چي ته چيرته ځي، ومې ويل چي ده افغانانو ته، هغه وويل چي موږ خو سرای شمالي ته ځو، ته دلته کښته شه او بل موټر ته وخيږه، د دي خبري سره سم د موټر چلوونکي بريک وواهه او ويې ويل چي پاين شو.

زما ملګری وايي چي زه پوه شوم چي غله دي، خو داچي ډير وو، او بل پوهيدم چي د پوليسو سره لاس او اړيکي لري، که جنګ او جنجال کوم هم کوم ګټه نه کوي او يوائي داچي نور به هم خلک راپسي وخاندي، بل داچي خپل جيب هم راته معلوم وو چي چندان زيات دولت پکې نه وو.

په دي ډول يې زما څخه پيسي يوړي، هغه وايې چې کيدای شي په اول ځل چي ماته يې وويل چې دروازه سمه نه ده بنده، په هغه حالت کې يې زما د جيب څخه ټول شيان ايستلي وي، د شا چوکۍ کسانو ته يې ورکړي وی، هغوی پيسي ورڅخه جلا کړي وي او نور اسناد چي د بانک کارډ او ځيني نور کارډونه وو چي ددوی په درد يې نه خوړل بيرته يې دمخ په چوکۍ کي ناست غله ته ورکړي وي، دوهيم ځل چې بيا يې وويل چي دروازه خلاصه ده او ما خلاصه او بنده کړه، په دغه حالت کې به يې هغه زما کارډ او نور کاغذونه بيرته زما په جيب کي ايښي وي.

دغه ډول غلاوي ډيري د هغو کسانو څخه کوي چي د ولايتونو څخه کابل ته راځي، او هغه خواران چي ځيني يې په لومړي ځل کابل ته راځي د غلو په دغو چلونو نه پوهيږي، چي په ټکسي کي به ټول خپل سره ملګري غله يو ځای وي او بيا به ورڅخه په لويه لاره کي پيسي وړي، او يا به په لاينې ټکسي کي ملګري غله ناست وي او ديوه نفر ځای به يې پري ايښي وي او دهغه څخه به پيسي غلا کوي.

دا ډول نور چلونه هم غله کوي چي په ترتيب سره به يې زه تاسي ته ورسوم، خو هيله مي داده چي زموږ هغه ورونه چي دغلو ددغه ډول کړنو سره مخ کيږي او يا خبريږي، هغه خپلو دوستانو او د کليوالو ترغوږونو ورسوي، او که کله هم

ددوی دوست له ولایت او یا بل ځای څخه کابل ته راځي، هغه باید مخکې له دې چې په ټکسي کې سپور شي وپوهوي چې له جیبو سره پام کوه او د غلو ځیني چلونه ورته وښئي.

دا چې له کابل څخه کندهار، هلمند او هرات ته ۳۰۳ بس موټران د شپې حرکت کوي نو ددغو سیمو ډیری کسان د شپې پر یوه نیمه او دوه بجې د کوربه له کور او یا هوټل څخه راوځي او تر کندهار اډې پورې ټکسي نیسي چې ډیری کسان له ورته پیښنو سره مخ شوي او د ټکسي چلوونکي لخوا د مخکې جوړ شوي پلان له مخې غلو پیسې او قیمتي سامان لکه ساعت، قیمتي ګوتمۍ، او نور سامان چې په لاسي بکس کې ورسره وي ورڅخه وړي دي.

دا ډول د ورځې له خوا هم په ټکسي کې ډیر مسافر د غلو له خوا شکول شوي او دهغوی له جیبونو څخه پیسې، موبایل ټیلیفون او دا رنګه د سامان څخه ډک بکسونه ورڅخه غلا شوي دي.

په ملي بس کې چې د سوارلیو ډیره ګڼه ګوڼه وي هم ورته ډول غلا کیږي، له ډیرو کسانو څخه موبایل غلا کیږي او کله کله یې جیب هم وهل کیږي.

که ستاسي هر دوست کابل ته راځي، ښه داده چې توصیه ورته وشي، چې که ټکسي نیسي نو د ټکسي له چلوونکي سره دې مخکې له مخکې خبره خلاصوي چې بل نفر ته به یې نه دروي او نه به بل نفر راخیږوي، د ټکسي چلوونکي ډیر وخت وایې چې خیر خو کرایه کمه راکړه زه به د شا چوکۍ کې نور سپاري هم راوا خلم، چې غم په دغو د شاکسانو کې وي، او بیا یې په ګټه لوټي، په هیڅ ډول له خپل ملګري ما سیوا بل څوک په ټکسي کې مه درسره پریږدئ. کله کله د ټکسي چلوونکي یواځي وي په مخکې یې خپل ملګري غله کښینولي وي، که ستاسي دوست په دې پوه شي چې ټکسي لاره واړوله نو ښه داده چې ورڅخه کښته شي.

خپلو هغو ملګرو او دوستانو ته چې له اطراف څخه راځي او په ښار کې بلد نه وي او د ښار د غلو په اړه معلومات ونه لري، هغوی دې هغه ټکسي ته نه خیږي چې نور کسان پکښې وي.

ملي بس ښه دی خو د خپل موبایل او جیب سره دې زیات پام کوي، که چوکۍ پیدا کړي او پکې کښیني ښه ده. ترټولو په اوس وخت کې مصؤن ښاري موټر ټونس بللای شو، چې ډیری د غلا پیښې پکې نه کیږي، خو کله کله په ټونس موټر کې هم داسې پیښې کیږي، ولې ډیري لږ.

زما هدف ټول ټکسي چلوونکي نه دي، ډیر ښه کسان په ټکسي چلوونکو کې شته چې د همدې لارې څخه خپلو بچو ته حلاله روزي ګټي، خو دغو ځینو له الله نه نه ویریدونکو د ټکسي چلوونکو غلو ددوی ټولو رنګ وربد کړي، په کار ده چې ښه ټکسي چلوونکي هم دې ته متوجه شي او ددغه ډول ټکسي چلوونکو په مخنیوي کې مرسته وکړي او د ټکسي د چلوونکو د اتحادیې د لارې یې مخه ونیسي، ترڅو د وچو له کبله لاندې ونه سوځي، او که دغه ډول حالت دوام پیدا کړي نو خامخا به ددوی پر کاروبار منفي تأثیر اچوي.




زما وړاندیز دادی چې خپلو دوستانو ته چې کله کابل ته راځي او یا د شپې له خوا د بسونو اډو ته ځان رسوي، هغوی ته د غلو یاد شوي چلونه وښودل شي ترڅو تر اډې پورې مصؤن ورسیږي

# له کیوبا راغلی، فاتح طالبه ستړی مشی

مولوی نذیر احمد اخندزاده

هغه الله جل جلاله لره دی حمد اوثنا وی چی دیوسفی مینی په ازموینی کی یی بری ستا په برخه اوسترویارېی دروبښلو بی شمیره درود اوسلام په مدنی جانان هغه ښوک چی په درجنودرجنو محبینو یی د سپڅلی مینی په ویاړخپلی غوښی اوهډونه دباردو په انګارکباب کړی ځینو په مستی مستی خپل سرونه ترداره یووړل اوځنی نورو یی د ریښتینی مینی په تورد کیوباتربدنام اووحشی زندانه له درد ډک پړاوونه ووهل

دزړګی سره دوحشت ځپو ځپلی مجاهد ملګریه دامنم چی ډیری سترپاوی اوله تحمل نه وتلی ستونزی شکنجی اوزحمتونه دی وګالل خوددی شکرهم اداکړه چی په دعوه کی ریښتینی اوپه سپڅلی مینه کی بریالی وختی

دصلیب په کرغیړن لاس ستاسو ترنیول کیدووروسته څه باندی یوه لسیزه ستاسونورورونه هم په ارام پاتی نشول هغوی هم دصلیب اودهغوی دغلامانو په لاس دباګرام پلچرخی خوست کندهاراوپه لس ګونونورزندانونو کی کلونه کلونه درنړا په هیله دمظلومیت شپی صباکړی

خوستاسو کیسه نوی رنګ اوجداخوندلری اوافغان مسلمان مجاهد اولس ته یی نوی نوی زیری له ځانه سره راوړل اوهغه څکه چه تاریخ ثابته کړی کله چی دکوم ظالم اوفرعونی طاقت دځپلو اودځمکی له مخه دتری تم کیدلو شیبی رانیزدی شی الله ج یی په کور دننه دیوچا مرسته کوی اودغه ظالم پری نابودوی موسی ع یی د فرعون په کوردننه له مرګ څخه وژغورلو همدغه فرعون یی پالنه کوله ټول ورځنی مصارف یی په غاړه اخستی اودژوندانه ټول ضروریات یی ورپوره کولاخرالامر الله ج موسی ع ته امروکړچی دفرعون مقابله وکړه اودفرعونی نظام په نابودولو کی یی دموسی ع مرسته وکړه

فرعون له خپل لښکراوجاسوسانو سره یوځای سرګردانه اولالهانده دموسی ع په وژلو پسی توره ترملا دمصرلو په ځمکه ګزاوپل کړه خوموسی ع په ارامه فضاکی دفرعون په کوردننه دفرعونی نظام دنسکورولولاری چاری لټولی

نن هم صلبی ځواک په تاسواوستاسودسنګرپه ملګرو پسی په یوه ګډاولوی اشرداټوله ځمکه ګام په ګام هغه ددوی په اصطلاح انچ په انچ ولټوله خودناصرالله ج فلان بل ؤاوهغه داچی تاسویی ترسترګولاندی دکیوباجزیره کی دیره وی اوددوی دلانوروځپلولپاره مونوی نوی تدبیرونه جوړول آن تردی چی دوخت دفرعون له کوره په راوتلو سره موسمد ستی دالله اکبرناروپه ویلو سره دوخت دظالم اومتکبرځواک سره دمقابلی اعلان وکړ دوهمه دپام وړاوپرزړه پوری خبره داده کچری موسی ع دفرعون په کورنوی دیره شوی نوحطمی خبره داوه چی دقبطیانودلکونوماشومانوپه ډله کی به موسی ع هم دفرعونیانوپه لاس وژل شوی ؤ

داچی الله ج یی دنجات اوساتلو فیصله کړی وه همدغه مهربان ذات دفرعون په کوردیره کړ مجاهده ملګریه کچری تاسودغه دیارلس کاله دبندموده دکیوباله جیل نه بهرپه سنګرونو کی له خپلونوروزرګونو شهیدانوملګروسره پاتی وای نودغه کبرجن دښمن موستاسو په هکله ستاسو ترشهادت بل

هیڅ انتخاب نه درلودلو اوس موهغه اتلان ترسترګو کیږي چي مودیارلس کاله وړاندې دسنګرملګرې ؤکه دشهادت په خوب ویده دي دخدای ج فیصله وه چي تاسو به دصباورځې دخدمت اوصلیبي ځواک دشکست لپاره دغه ټاکل شوي موده روغ سالم دظالم په کورساتنه کوی اویوه ورځ به مودحق اوباطل ترمنځ دمقابلې ډګرته رااوباسي

ښه مي په یاددي په کال ۱۳۹۱ ل دکابل دبي واکه رژیم دمشرحامدکرزي لخوا څخه یوفرمان صادرشوچي دپل چرخي له زندان څخه دي هغه علما چه مدرسین دي ازاد کړای شي په ظاهرهخو دافرمان په خوا خوږېښناؤ مګرحقیقت داو چي دکرزي دټیم ملګروشکایت کړی وو چي ملایانو په زندان کې دننه دفقه عقایدو احادیثو کتابونه اودقران کریم تفسیراوترجمه شروع کړي دوی ډوډۍ زموږ خوري زموږ په بلاکونوکي اوسیږي دبرق اوبو اوداسي نورو لګښتونو یې زموږ ملاوي ماتي کړي خوبرعکس هغوی په زندان کي زموږ په وړاندی ویده خلک راویښوي هغه کسان چي پخواتردي یې سم لمونځ لانه ووزده اوس په هرڅه پوهیږي کال په کال ورنه مولویان اوقاریان جوړیږي چي له زندانه ترخلاصیدووروسته سمدستي زموږ په مقابل کي دجهاد اعلان کوي اوس هغوي دعقیدي په لحاظ عینا دطالبانو عقیده لري نولازمه ده چي دغه مدرسین ملایان له محبسه اوباسوترڅودغه مدرسي هغه ددوی په ژبه دطالب جوړوني فابریکه وتړل شي

په رښتیا هم په محبس کي دننه همدا لړۍ روانه وه زه د شپږم بلاک دریم منزل په ګوشواره کي بندي وم دکرزي دمزدوررژیم دعسکرولخوا یوزیات شمیرمظلوم افغانان چي په هغوکي دوکانداران بزګران معلمان تجاران دښوونځیو زده کوونکي اوعام خلک شامل وو چي یو یې هم طالب یامجاهد نه ؤدهیوادله ګوټ ګوټ نه پدې ګناه ترزندانه راکشکړي وو چي تاسوله طالبانو سره پیژني یامو ډوډۍ ورکړې یاورسره خواخوږي یاست یامو دوستان اودقوم خلک طالبان دي

په محبس کي دننه بندي علماکرامو دشفقت له مخې هغوی ته دیني زده کړې ورکولې چي دظالم رژیم ددغه ظلم په بدل کي دغه مظلوم افغان بندیان له زندان نه تررا وتلو وروسته نیغ په نیغه دمجاهدینو لیکوته ورتلل اوپه عملي جهادکي یې برخه اخسته

ظالم درفکراین که باما چه کند   مادرفکراین که خدا چه کند

صلیبیان او اجیرنوکران یې پدې فکرکوي چي له موږ سره څه وکړي په کوم چل فریب اونیرنګ موختم یاکم کړي خو موږ پدې فکرکووچي دالله ج دتقدیرفیصلی به څنګه اودچا په زیان دچا په ګټه وي

دادي اوس سرګنده شوه الله ج هغه څه وکړل چي صلیب اوزیره خورویي هیڅ توقع نه درلوده وایي چي فلاني بدبخته له بازاره هیڅ طالع نلري صلیبیان دانسانیت له دایرې وتلي هغوی لاتراوسه هم غوښتل هرڅه دزوروظلم انسان وژني او وحشت له لاري لاسته راوړي ځکه هغوی په قوي اقتصاد پرمخ تللو وسلو ایتمي توغندیو عصری تکنالوژی باندې متکي وو مګرهي افسوس ددوی په حال چي داهرڅه یې دایماني پرمخ تللي وسلي په وړاندې ناکاره شول اودخپلو اسلافو په قدم یې قدم کیښود اودیوي سختي مجبوري په اساس یې دشرم اوخجالت څخه ډک شکست ته غاړه کیښوده چي لله الحمد دافغانستان پاکه اوسپیڅلي خاوره ورځ تربلې ورځې ددوی له ناولو منګولو څخه ازادیږي اوس هغه شیبې رانیږدې شوې چي دنیا وال به دصلیبیانو دتښتي روستۍ شیبي په ډرامیزوچکچکو بدرګه کړي انشاالله تعالی په پای کي دکیوبا له زندان اودصلیب له ناپاکو منګولو څخه داسلامي امارت دپنځو تنو لوړرتبه مشرانو دخلاصون په مناسبت عالیقدر امیرالمؤمنین په صلیب ځپونکو سنګروکي دیره مجاهدینو دا سلامي امارت نورو مخلصومشرانو اوټول افغان مجاهداولس ته دزړه له تله مبارکي وایم

# د برونایئ هیواداو دروژي بختوره میاشت !!




برونایئ ( دارالسلام ) چې دشرقي اسیادالجزایر، فلیپین اواندونیزیا په منځ کې پروت هیواد اوجزیره ده دوسعت په لحاظ دنړئ دریمه لویه جزیره یادیږي ، الله تعالی نوموړی هیوادله قیمتي زخایرو ، تیلو اومعادنوڅخه مالامال پیداکړي له ۸۰ فیصده زیات یعني څه کم یومیلون مسلمانان پکې استوګنه لري، نوموړي هیوادته داسلام رڼایي په ۸۲۹ هجري قمري کال کې رسیدلي .

په دې سربیره چې برونایئ دنفوسو اومساحت له امله کوچنی هیوادبلل کیږي ، خودحکومت دپاملرنې له وجې دیني اقدار اورسومات پکې له ډیرواسلامي هیوادونوبیساري اودیادوړ دي ، چې ویل کیږي دبرونایئ دپاچاله لوري په وړوجوماتونوسربیره ۱۰۰ جامع جوماتونه جوړشوي چې په زرګونو تنه لمونځ کونکي پکې په اساني دالله عبادت کولای شي . دالحیات ، ورځپاڼې دراپورپه اساس ، دبرونایئ مسلمانان ډیرمتدین دي ، ښځې یې اسلامي حجاب اغوندي اواولادونه له کوچني والي په دیني روحیه لویوي اوروزي یې .

همدارنګه اسلامي حدودهلته نافذ دي که څوک ، غلا وکړي ، شراب وڅکي اوپه زناولیدل شي دشریعت حکم پرې تطبیقیږي ، که څه هم غربي نړۍ په دارالسلام کې داسلامي شریعت په نفاذ کلک غبرګونونه وښوده خو دبرونایئ پاچا ( سلطان بولکیا ) له خپل اقدام څخه کلکه دفاع وکړه اودشریعت تطبیق یې دانسانیت داصلاح اوپرمختګ مهم دلیل وباله.

ویل کیږي چې دسلطان بولکیا ، دولسمشرۍ اوسنی ماڼۍ چې ۱۰۰۰ اطاقه لري اوپه تزیئین کې له طلا څخه هم استفاده کړې ، درمضان المبارک دمیاشتې په راتګ له افطار ورسته تړیشلیمي پوري پکې دقرانکریم ختمونه ، تراویح اوتلاوتونه کیږي.

داسلام مقدس دین په ټولوتعلیمي اودولتي اداروکې په کامل ډول نافذ دي ، زکات له خلکو اخستل کیږي اوبیرته په فقیرانو تقسیمیږي ، دارنګه که یوڅوک دلمانځه په ترک اویاشراب خوری اونورو ناروااوو ګیرشي په دولتي اداروکې ورته خاصه محکمه تاسیس شوي اودج رم مطابق سزا ورته ټاکي .

لدې سره چې په نوموړي هیوادکې مسیحیان اوبودایان اوسي ،خو دهغواومسلمانانو ترمنځ تراوسه کومه داسې شخړه نده رامنځته شوي چې یادونه ورنه وشي ، تردې چې دروژې په میاشت کې مسیحیان درمضان ددرناوي اوله مسلمانانو سره دهمغږي په خاطر یوشمیرروژي هم نیسي ، چې همدغه لامل هم دمسیحیانو دمسلمانیدو سبب ګرځي اوداسلام دمقدس دین نجات بښونکي دین ته داخلیږي .

شاذلي حاج صالح، دبرونیئ دپولیسویو افسردی ، هغه وایي چې دروژې په میاشت کې ډیرئ مسیحیان اوبودایان داسلام دین ته مخ اړوي ، مونږ ته مراجعه کوي اوپه خپلو پیژندپاڼو کې دخپل دین نوم اسلام لیکي . دبرونیئ یوه مسلمانه میرمن ، حمیده دورمان ، وایي دهغې یوه مسیحي ملګرې وه چې څوکلونه یې له هغې سره ددوستۍ په نیت روژه نیوله ، چې بالاخره دروژې معنوي اثارو پرې ژوراغیزوشیندله اوداسلام مقدس دین باندې مشرفه وګرځیدله .

ایدی لیونګ، چې یومسیحي دی وایي هغه له مسلمانانوسره دیورنګې لپاره دروژې په میاشت ګڼې روژې نیسي او جالبه خبره داده چې هیڅ ډول تنده اولوږه نه محسوسوي .

# د شهید

# مولوی نورقاسم "حـــــیدري"

## ژوند او کارنامو ته کتنه

عبدالرؤف "حکمت "

د ۱۳۹۳ هـ ش کال د حمل میاشتې پـه ۱۸ نیټـه رسـنیو خبر ورکـړ ، چې دکونړ ولایت پـه شیګل ولسوالۍ کې دهمـدې ولایت لپاره د طالبانو نظامي مسؤل /والي د امریکایي بې پیلوټه طیارې په برید کې په شهادت رسیدلی .

له معمول سره سم د مولوي نورقاسم حیدري صاحب د شهادت خبر د ورځنیو عادي خبرونو په حیث په مطبوعاتو کې بدرګـه شـو ،خو ددې نومیالي مجاهد دشهادت خبر کوم عادي خبر نه و، په هماغه ورځ په حقیقت کې افغان مؤمن اولس خپل یو کمساری باتور بچی له کفر سره دمقابلې پـه جګړه کې لـه لاسه ورکړی و.

هو کې، مولوي نور قاسم هغه مجاهد و چې د رجالو دقحطۍ په دې زمانه کې یې نـه یـوازې پـه جهـادي ډګـر کې دیـوه نـه ماتیـدونکي، زړور، مخلص او لاربښود مجاهد په حیث دنده اجراء کوله بلکې د خپلو ملګرو مجاهـدینو تـر منځ په محلي کچه د یـوه رهنما پـه موقـف کې وه، چې پـه شـهادت یې ډیـر زړونـه وردردیدل .

راځئ یوه شیبه ددې نومیالي مجاهد په ژوندپیښو، کارنامو او شخصیتي ځانګړنو سره وغږیږو او د یاد په تازه کولو یې دهجران تنده ماته کړو .

### پیدایښت او زدکړې

نورقاسم حیدري د حاجي محسن زوی پـه ۱۳۵۲ هـجري شمسي کـال د افغانستان د خوست ولایت دصبریو ولسوالۍ په نیکنام کلي کې په یوه دیـنداره کورنۍ کې دنیا ته سترګې وغړولې .

نوموړي خپلې لومړنۍ زده کړې د ماشومتوب په مهال پـه خپلـه سیمه کې د مسجد له ملاامام څخه ترسره کړې، د کمونیستي کودتـا وروسته یې د هجرت په مهال د پاکستان په خیبـر پښتونخوا کې پـه مختلفو مدارسو کې د دیني علم حصول ته دوام ورکړ .

په دې لړ کې نوموړي خپلې زده کړې په کوهاټ کې پیل کړې وروسـې یې د هنګو ولسوالۍ مربوط د درسمند سیمې رحمانیه مدرسه ، پـه میرانشاه کې منبع العلوم مدرسه ،د خوست منبع الجهاد مدرسـه ،د وزیرستان دشوې سیمې ریاض العلوم مدرسه ، د هنګـو دکـاهي سیمې سراج الاسلام مدرسـه او دافغانستان او پاکستان په ګڼو نورو مدارسو کې یې دیني زده کړو ته دوام ورکـړ تردې چې له دیني علومو د فراغت سند یې په ۱۳۷۶ هـ ش کال د هنګو مربـوط زرګري سیمه کې واقع په جامعة العلوم الاسلامیه مدرسه کې له مشهور استاد شیخ الحدیث بهرمند صاحب څخه ترلاسه کړ .

مولوي نورقاسم حیدري صاحب خپلو دیني زدکړو تـه پـه داسې مهال ادامه ورکوله چې ورسره یې جهادي فعالیت هم نه هیراوو نوموړی بـه دکـال پـه اوږدو کې څه موده په سنګر کې او څه موده په مدارسو کې و، له دیني علومـو لـه فراغت وروسته یې څه موده دخوست ولایت د صبریو ولسوالۍ په مچۍ سیمه کې دشمس العلوم مدرسې دمهتمم او مدرس په حیث دنـده اجـراء کـړه ددې مدرسې دبنسټ ډبره نوموړي په ۱۳۷۱ هـ ش کال کې ایښې وه چې تراوسه فعاله ده او دشهید حیدري صاحب دخیرجاري په حیث په کې طالب العلمان دديني علومو زده کړې کوي .

## د کمونیزم په خلاف جهاد

مولوي نورقاسم حیدري د صورت او سیرت په لحاظ د جهاد او مبارزاتي ژوند یو مجسم تصویر و، په نوموړي کې د اسلام د لارې د یوه سرسپارلي مجاهد ټول صفات موجود و، تا به ویل دغه انسان الله تعالی یوازې د خپل دین ددفاع او د کفر په مقابل کې دجنګیدلو لپاره خلق کړی دی، ځکه نوموړي خپل ټول ژوند جهاد ته وقف کړی و، خبرې، فکر او ټول کړه وړه یې د جهاد په اړه و، نوموړی په کشرتوب لا شوروي یرغلګرو او دهغوی له کمونیستي ګوډاګیانو سره وجنګېد، په تانده ځوانۍ کې یې د شر او فتنو په مقابل کې د جهاد سنګر وپاله او په نسبتا پاخه عمر کې یې دامریکایي طاغوت په مقابل کې د مسلح جهاد سنګر تر هغو تود وساته چې په همدې لاره کې یې د شهادت جام غړپ کړ.

د شهید حیدري د جهادي ژوند، اتلولیو او کارنامو داستان خورا اوږد دی چې دلته یې موږ په لنډو جهادي خدماتو ته اشاره کوو.

هغه مهال چې د شوروي اتحاد سرو لښکرو په افغانستان هجوم راوړی وو، او په زرګونو مسلح ځواکونه یې په خوست ولایت کې ځای په ځای کړي وو، هغه مهال چې خوست ولایت د اسلام او کمونیستي کفر ترمنځ د تودې معرکې په ډګر اوښتی وو، او د شوروي عسکرو د ډېرښت له امله یې د دوهم مسکو لقب ګټلی و، په همدغه وخت کې نورقاسم حیدري چې لا بیخي کم عمره وو دخوست ولایت په باک، علیشیرو، ځاځي میدان، یعقوبي، ژوره او توره غاړه سیمو کې یې د کمونیزم په خلاف په جهادي تعرضونو کې برخه واخیسته، نوموړی له کوچنیوالي د مرمیو له باران، د سکډ توغندیو له چاودنو او روسي مېګ او برګیو له بمبارونو سره بلد شو، دجګړو په لمبو او ماینونو په چاودنو کې رالوی شو، دخوست د بړي په ساحه کې زخمي شو او دالله تعالی په لاره کې د وینو دصدقې خوند یې وکوت، له کفري لښکرو سره دمخامخ جنګیدلو او د کمونیزم په پوستو د ورختلو هنر یې عملا تجربه کړ، د خوست په عظیمه فتحه کې یې د یوه تاند مجاهد په حیث رول ولوباوو، دخوست له فتحې وروسته د کمونیزم د ټغر ټولولو په نیت له نورو مجاهدینو سره یوځای د پکتیا د مرکز ګردیز په خوا لاړ، په ستو کنډو، مچلغو او ګردیز ښار په شاوخوا نورو سیمو کې یې د کمونیستانو خلاف په سختو جګړو او تعرضونو کې برخه واخیسته او تر هغه یې جهاد ته ادامه ورکړه تر څو کمونیستي حکومت ونړید.

د تنظیمي دورې په وروستیو کې چې د مولوي عبدالحکیم شرعي صاحب په مشرۍ په خوست ولایت کې دنظم راوستلو او فساد دمخنیوي لپاره کوم تشکیلات جوړ شول مولوي حیدري هم په کې ګډون وال و چې د خلکو دسر او مال د خوندي کولو لپاره یې ستر خدمتونه ترسره کړل.

## د طالبانو په اسلامي تحریک کې خدمت

په ۱۳۷۳ هـ ل کال کې چې دطالبانو اسلامي تحریک په کندهار کې ظهور وکړ، مولوي نورقاسم حیدري چې دغه مهال یې په پاکستان کې دیني زده کړې کولې د خوست ولایت د یوشمیر طالبانو سره یوځای د بلوچستان له لارې کندهار ته لاړ او په هماغو ابتدائي شیبو کې له اسلامي تحریک سره ملګری شو، نوموړي د شهید ملا بورجان اخند، شهید ملا مشر او داسلامي تحریک د نورو مشرانو په ملګرتیا د غزني او میدان وردګو ولایت په تصفیه کې برخوال و، تر څو چې دطالبانو اسلامي تحریک تر خوست پورې ورسید، دغه وخت چې د طالبانو جنګي کرښه د کابل په چهار اسیاب کې وه مولوي نورقاسم د خوست ولایت د ۷۰ تنو طالبانو سره یوځای چهاراسیاب ته لاړ، دوی داسې مهال چهار اسیاب ته ورسیدل چې په همدې ورځو کې طالبانو د دهمزنګ او کارته سه په سیمو کې د حزب وحدت لخوا تخلیه کیدونکي سیمې نیولې،مولوي نورقاسم صاحب هم له خپلو ملګرو سره دکابل ښار په جنوب لویدیځ کې همدې سیمو ته داخل شو، وروسته چې په همدې سیمه کې مسعود ناځاپه په طالبانو برید وکړ، د سختې جګړې په پایله کې مولوي نورقاسم صاحب هم زخمي شو،

د نوموړي دهمدې صحنې یو ملګری وایي: طالبانو او دمسعود کسانو چې تردې وړاندې یې جګړه نه وه سره کړې په ډېره نږدې فاصله کې اوسیدل، ماسپښین مهال مسعود ناځاپه په طالبانو برید وکړ، همدلته جنګ ونښت، موږ د سرک په یوه غاړه وو او بلې غاړې ته په پنځه یا شپږ مترۍ کې دمسعود وسلوال و، زه له لږ جګړې وروسته ټپي شوم، اومولوي حیدري ته مې وویل چې له دې ځایه باید ووځو، ده په اطمینان راته وویل ته یو پټ ځای کینه زه په دښمن ګوزارونه کوم تر څو د وتلو لار پیدا شي، له نوموړي سره راکټ لانچر وو په دښمن یې پرلپسې څو ګوزارونه وکړل، چې ددښمن ګڼ کسان په کې له منځه لاړل، دهمدې جګړې په مهال یوه ملګري په مولوي حیدري باندې غږ وکړ چې په نږدې ودانۍ کې ددښمن کسان دي چې هشتادودو ورسره دی، تاسو سر مه پورته کوئ هسې نه زیان درته ورسیږي، مولوي حیدري راکټ ته مرمۍ واچوله او ویل یې چې وار به پرې مخکې کړم، خو چې کله یې د فیر لپاره سر ورهسک کړ مخکې له دې چې دراکټ فیر پرې وکړي له مقابل جانب څخه

د هشتادو فیر وشو، چې ددرانه انفجار په نتیجه کې مولوي حیدري په سر باندې په پرخچو ولګید او ځای په ځای بې هوښه شو.

کله چې راپه هوښ شو نو سره له دې چې سخت زخمي و بیا یې هم له موږ سره دچهاراسیاب په خواتګ ته ادامه ورکړه همدغه مهال طالبان د کابل له غرب څخه بیرته د وتلو په حال کې و، موږ چهاراسیاب ته راغلو او څرنګه چې مولوي صاحب سخت زخمي وو د شپې مو خوست ته ورساوو، د خوست په روغتون کې ډاکټرانو چې ایکسري واخیستې او دده د سر ټپ یې ولید نو حیران شول چې څرنګه ژوندی پاته دی ځکه دده د سرهډوکي مات و او پرخچې یې په دماغو کې ښخې وې، ډاکټرانو ویل چې ددې علاج زموږ د وس کار نه دی او دژوند یې هم لږ احتمال شته، د ډاکټرانو د جواب نه وروسته موږ پیښور ته ورسولو، خو هلته هم چې ډاکټران ددماغو ټپ ولید نو له عملیاتو یې انکار وکړ، ډاکټرانو وویل چې دده ټپ ډیر حساس دی که عملیات یې وشي ژوند به له لاسه ورکړي ښه داده چې کور ته یې ورسوئ ترڅو له خپلو خپلوانو سره وروستۍ دژوند شپې تیرې کړي، ډاکټرانو ویل چې ددوی سخت ټپ سره سره موږ حیران یو چې څرنګه ژوندی پاته دی او په خپلو پښو ګرځي، دوی ویل چې دا یوازې ددې مجاهد کرامت کیدلای شي او بس.

کله چې مولوي حیدري ته د ډاکټرانو د ځواب خبره ورسیده ده داآیت ووایه : اذا جاء اجلهم لایستأخرون ساعة ولا یستقدمون . یعني مرګ په خپل وخت دی او هیڅکله مخکې یا وروسته کیدلای نه شي.

په پیښور کې د ډاکټرانو له ځواب وروسته نوموړی ملګرو بیرته خوست ته راوستلو خو خپل کور ته تر رسولو وړاندې یې په خوست کې د بادشاه زار په نوم ډاکټر ته وروستلو ترڅو یې دخپل وس مطابق علاج وکړي، دې ډاکټر وویل چې د مولوي صاحب زخم ډیر ژور او حساس دی عملیات یې خطرناک دي چې به عملیاتو کې یې یوازې لس فیصده د ژوندي پاته کیدلو احتمال شته، زه یې په دې شرط عملیات کوم چې له کورنۍ او ملګرو څخه یې داجازې لاسلیک راته راوړئ، د ملګرو له مشورې وروسته نوموړي ته همدا لاسلیکونه راوړل شول، او نوموړي دمولوي صاحب د سر زخم عملیات کړ، د ډاکټر دعملیاتو له پیل سره یوځای دمولوي صاحب ملګرو د سورة یس ختم او مأثورې دعاګانې پیل کړې، لږ شیبه وروسته ډاکټر زیری راووړ چې دمولوي صاحب عملیات کامیاب شول او له اعصابو څخه یې هډوکي راوایستل شول.

دهمدې عملیاتو په نتیجه کې دمولوي صاحب د سرزخم یو مخ ښه شو، خو ډاکټر ورته سپارښتنه کړې وه چې تر ډیر وخت پورې به په جنګ کې شرکت نه کوي او نه به په راکټ لانچر باندې فیر کوي، خو دمولوي صاحب د جهاد جذبه خورا غالبه وه تردې چې له صحت یابۍ وروسته بیا داسلامي امارت جهادي لیکو ته لاړ او دامریکایي یرغل ترمهاله یې بیا بیا په جهادي تعرضونو کې شرکت وکړ نوموړی د چاریکارو په جنګ کې یوځل بیا زخمي شو او ترهغه وخته یې د شراو فساد په مقابل کې جهاد ته ادامه ورکړه چې امریکایانو په افغانستان یرغل وکړ.

## دامریکایانو په خلاف جهاد

په افغانستان د امریکایانو له یرغل وروسته مولوي صاحب نورقاسم له مقدمو مجاهدینو څخه و چې دخوست په ولایت کې یې دامریکایانو په خلاف مسلح جهاد پیل کړ، د نوموړي دمدبرانه مشرۍ له برکته د خوست ولایت د صبریو ولسوالي په همدې سیمه کې دجهاد په یوه نه ماتیدونکی سنګر واوښتله، او امریکایانو په کې سخت تلفات ولیدل، سره له دې چې امریکایانو په دې سیمه کې خورا سخت ظلمونه او وحشتونه ترسره کړل، د صبریو او خوست د نورو سیمو په زرګونو خلک یې بندیان او شهیدان کړل خو بیا یې هم په اولس کې دجهاد جذبه ونه وژله.

مولوي نورقاسم صاحب چې څه موده د خوست په صبریو ولسوالۍ کې د جهادي چارو مشر او ورپسې ډیره موده د خوست ولایت عمومي جهادي مسؤل/ والي و په دې ولایت کې ستر جهادي خدمتونه سرته ورسول.

نوموړي چې خپله یې په جهادي عملیاتو کې شرکت کاوو او دعملیاتو قومنده به یې په غاړه وه د خوست څلور ولسوالۍ باک، علیشیر، صبري او قلندر ولسوالۍ دغه راز دپکتیا مربوط جاني خیل ولسوالي یې په مکرر ډول فتحه کړې، دخوست په لراوبر کې ددښمن ډیرې پوستې یې هم بیا بیا فتحه کړې چې ددې عملیاتو په ترڅ کې یې نه یوازې دښمن ته درانه تلفات واړول بلکې بیا بیا یې لوی مقدار غنایم هم ونیول.

په خوست کې یوه سخته جګړه چې نوموړی په کې زخمي شو، دخوست په علیشیرو ولسوالۍ عملیات و، ددې عملیاتو په نتیجه کې نوموړي ددښمن ګڼې دفاعي پوستې فتحه کړې او دولسوالۍ مرکز ته ورسیدل، خو کله یې چې د ولسوالۍ په مرکز برید وکړ د مجاهدینو مهمات کم شول، همدغه مهال دنوموړي همسنګر او تکړه مجاهد دکابل اوسیدونکی ملا مصطفی په شهادت

ورسيد، مولوي حيدري ملګرو ته وويل چې د مهماتو دنشتوالي له امله بايد عقب نشيني وکړي او شهيد له ځان سره واخلي د عقب نشينۍ په مهال په مجاهدينو امريکايي الوتکو بمبار وکړ چې د مولوي حيدري ګڼ تکړه مجاهد ملګري په کي شهيدان شول او خپله هم سخت ټپي شو، دا ځل هم د نوموړي ټپونو خورا سخت و او ډاکټرانو ويل چي ښايي د نوموړي بدن فلج شي، خوالله تعالى د ډاکټرانو د باور خلاف نوموړي ته يوځل بيا صحت ورکړ، له همدې زخمونو څخه له جوړيدلو وروسته مولوي صاحب له خپلو ملګرو سره يوځل بيا ددښمن په محاصره کې واقع شو، چې ټوله شپه له دښمن سره وجنګيد، په دې جګړه کې نوموړی يوځل بيا په سربانډې دوه مرمۍ ولګيد، خو دا چې الله تعالى د خپل دين دخدمت لپاره وربانډې ژوند لورولی و له سختو ټپونو سره سره بيا هم ژوندي پاته شو.

په خوست ولايت کې د نوموړي وروستي دوه ستر عمليات چې خپله يې مشري او ترتيب په غاړه و يوځل د خوست په خلبيسات سيمه کې دامريکايانو په ستره قرارګاه بانډې لومړني فدايي عمليات و، چې پلان او نقشه يي مولوي صاحب جوړه کړې وه په دې عملياتو کې فدايان په لومړي ځل دامريکايانو په اډه ورننوتل، امريکايان يې سخت وځپل او د باوري سرچينو په استناد په دې عملياتو کې تر سلو ډير امريکايي عسکر مړه او ټپيان شول.

له همدې عملياتو وروسته په ۲۰۰٦ م کال کې د مولوي صاحب په مشرۍ دخوست ولايت په دريو ولسواليو صبريو، باک او عليشيرو بانډې په هم مهاله توګه ستر عمليات پيل شول چې دښمن ته په کې درانه تلفات واوښتل، ددې عملياتو په مهال مولوي حيدري صاحب چې دخلبيسات په سيمه کې ددښمن په پوستو په عملياتو کې برخوال و، يوځل بيا ټپي شو چې دا په جهادي ژوند کې دنوموړي شپږم ځل ټپي کيدل و، خو په دې ځل هم الله تعالى دټيرو ځلونو غوندې کامله شفاء ورته نصيب کړه.

## د کونړ ولايت د مسؤل په حيث

د ۲۰۱۲ ميلادي کال په لومړيو کې شهيد مولوي نورقاسم د اسلامي امارت د مشرتابه په فرمان د کونړ ولايت د جهادي مسؤل په حيث وټاکل شو، نوموړی له ټاکل کيدو وروسته له خوست څخه کونړ ته لاړ او په جهادي صحنه کې يې عملا د جهادي صفوفو په تنظيم او ابتکاري برنامو په تعميل پيل وکړ، په کونړ کې دغه مهال يو ستر شکايت ددښمن له جاسوسانو څخه موجود و، مولوي صاحب په ټولو ولسواليو کي د ځانګړو خفيه ګروپونو په ګمارلو سره وتوانيد چې ددښمن ډير جاسوسان تشخيص او بيايي له مينځه يوسي، په دې سربيره نوموړي د جهادي تهاجمي عملياتو لپاره نوې طرحې وړاندې کړې چې په ډيرى سيمو کې يې ښې نتيجې درلودې، په دې لړ کې د کونړ په مروره، دانګام، اسمار، غازي اباد، ماڼوګي او ناړۍ ولسواليو کې ددښمن ۱۴ پوستې دمجاهدينو په عملياتو کې فتحه شوې دښمن ته په کې درانه تلفات ورسيدل او مجاهدينو ډيرې وسلې او مهمات غنيمت کړل.

د مولوي صاحب د جهادي پلانونو په نتيجه کې په ناړۍ کې دانچه ګل په نامه ددشمن مهم مرکز چې تر ۴۰ پوړې ددښمن ځواکونه په کې موجود وو فتحه شو، د کونړ په دانګام کې دښمن نيت درلود ترڅو دلته يو قوي مرکزي بيس جوړ کړي، خو کله چې مولوي صاحب ددښمن له دې پلان څخه خبر شو په متقابلو عملياتو او بريدونو سره يې ددښمن د دپلان د عملي کيدو مخه ونيوله او دښمن ونه توانيد چې دلته خپل اهداف ترلاسه کړي.

په کونړ کې دمولوي حيدري صاحب د مسؤليت په مهال يوه بله مهمه بريا د ۱۳۹۲ هـ ش کال د کب مياشتې په څلورمه د غازي اباد په ولسوالۍ کې ترلاسه شوه په همدې نيټه مجاهدينو ديوه دقيق پلان له مخې د مزدورې اردو په يوه قرارګاه بريد وکړ چې په نتيجه کې يې ددښمن شاوخوا ۲۵ تنه عسکر ووژل شول او ٦ تنه نور مجاهدينو ژوندي ونيول بايد وويل شي چې په دې فتحه کې اساسي کردار د هغو نفوذي مجاهدينو و چې له مجاهدينو سره يې تماس درلود او مجاهدينو ته يې د دې بيس په اړه پوره معلومات ورکړي وو.

په کونړ ولايت کې دمولوي نورقاسم بله کارنامه د خپلسريو له منځه وړل او په جهادي صفوفو کې همآهنګي رامنځته کول و نوموړي په دې لاره کې خورا ستر خدمات سرته ورسول او د ډيرو ناخوالو مخه يې ونيوله.

هغه غوليدلي افغانان چې ددښمن په ملکي او نظامي اداراتو کې يې وظايف اجراء کول مولوي صاحب ټولو ته دعوت ورکړ او حتى خطونه يې ورته واستول ترڅو له دې کار څخه لاس واخلي په دې لړ کې په سلګونو کسان د ډاړ له حاصلولو وروسته ددښمن له ليکو راووتل او خپل عادي ژوند ته ستانه شول، دمولوي نورقاسم صاحب د مسؤليت په مهال په کونړ ولايت کې د دعوت والارشاد / جلب او جذب پروسه په خورا بريالیتوب سره روانه وه، په دې لړ کې يوازې دکونړ په شيګل ولسوالۍ کې ۱۲٦ تنه هغه کسان چې پخوايي ددښمن په صف کې دنده اجراء کوله مجاهدينو ته تسليم شول او له دښمنۍ څخه يې لاس واخيست.

د ولسمشرۍ د وروستيو انتخاباتو په لومړي پړاو کې مولوي صاحب نورقاسم د لومړني مسؤل په حيث خپله په صحنه کې و نوموړي له انتخاباتو لس ورځې وړاندې د کونړ ولايت مختليفوسيموته سفر وکړ ترڅو ددښمن دغه پروسه شنډه کړي نوموړي په درست کونړ کې دانتخاباتو د شنډولو لپاره يو مؤثر پروګرام جوړ کړ ، ټولو مجاهدينو ته يې قومنده ورکړه چې دانتخاباتو په ورځ د سهار له پنځو بجو څخه ددښمن په مراکزو ، پوستو ، د ولسواليو په مراکزو او نورو دولتي اماکنو باندې بريدونه پيل کړي ، ددې عملياتو په لړ کې د ورځې په اوږدو کې په کونړ ولايت کې مجاهدينو ۷۰ لوی او واړه بريدونه په دښمن ترسره کړل، چې په نتيجه کې يې ددښمن ۸۸ تنه عسکر ، اربکيان او منسوبين له منځه لاړل او ګڼ نور ټپيان شول او په دې توګه په دې ولايت کې دانتخاباتو غربي منحوسه پروسه په بشپړه توګه شنډه شوه .

## د مولوي نورقاسم شهادت

د ۱۳۹۳ هـ ش کال د دحمل د مياشتې په اتلسمه نيټه مولوي نورقاسم حيدري چې له خپلو څو تنو ملګرو سره د کونړ د شيګل ولسوالۍ په مربوطاتو کې روان و او نيت يې و چې د کونړ ولايت له نورو جبهاتو څخه ليدنه کتنه وکړي ، ناڅاپه دامريکايي بې پيلوټه الوتکې تربريدلاندې راغی چې په نتيجه کې يې مولوي نورقاسم حيدري له خپلو دريو تنو مجاهدو ملګرو مولوي عبدالکريم جانباز ، منصور او حميدالله سره يوځای د شهادت لوړ مقام ته ورسيد .

انا لله وانا اليه راجعون

مولوي صاحب نورقاسم خپل هميشني ارمان ته وصل شو او د شهادت په ابدي سفر لاړ او ترشا يې شپږ اولادونه ۳ زامن او ۳ لوڼې پرېښول . رحمه الله تعالی

## خاطرې او د شخصيت ځانګړنې

د شهيد مولوي نورقاسم يو ملګری مولوي احرار وايي : له امريکايانو څخه د هجرت د ژوند په مهال زه او مولوي صاحب حيدري په يو کور کې اوسيدلو ، چې هغه کور په دوو برخو مشتمل وو ، په يو حصه کې يې زه اوسيدم او په بله کې يې حيدري صاحب اوسيدلو ، يوه ورځ حيدري صاحب په جهادي سفر ولاړ ، دراستنيدو پر مهال په لاره کې دمنافقانو تر بريد لاندې راغی چې حيدري صاحب په سر دستر ګو د کونجو په هډوکو ټپونه وخوړل ، خو الله جل جلاله يې ستر ګې له ړنديدو وساتلې ، او په همدې سفر کې يې چيرته په يوه روغتون کې ديوڅه مودې درملنې لاندې وو ، کله چې کور ته راستون شو ، زه له دې ناخبره وم چې حيدري صاحب ته مشکل پيښ شوي دی ، هسې د پوښتنې په نيت مې د کور دروازه وروټکوله مولوي حيدري صاحب په دروازه کې سر رابهر کړ ګورم چې ډير سخت ټپي ده ، ما ورته وويل چې دا ولې؟ ده کيسه راته وکړله ، چې په لار کې دمنافقينو لخوا ټپي شوم ، اوس دمجلس طاقت نلرم ، ما ورته وويل چې څه ولاړ شه آرام وکړه ، ځکه ډير زيات په تکليف وو ، په لمانځه کې يې دسجدې داداء کولو توان او طاقت نلرلو ، کله چې راتلونکي شپه تيره شوه ، نو سهار مې پوښتنه پري وکړه ، چې اوس به څنګه وي دروازه مې ووهله چې کله بيرون راووتلو ما ترې وپوښتل چې څنګه يې؟ ده په ځواب کې راته وويل : چې نن جوړ يم ، او راته ويې ويل چې بيګا شپه مې خوب وليدلو چې مفتي محمد فريد رحمه الله ( د دارالعلوم حقانيه مفتي او شيخ الحديث ) په خوب کې راغلو ، او راته ويې ويل : چې صبا به جوړ يې ، دحيدري صاحب په وينا چې سهار له خوبه راپاڅيدم چې کله په لمانځه ودريدلم بس جوړ تيار وم سجده مې هم وکړله ، او پخوا مې سجده نشوای کولای ، هيره دې نه وي ، چې حيدري صاحب دمفتي محمد فريد رحمه الله مريد او مسترشد وو ، او دطريقت تر شپږم سبق پورې وظائف يې سرته رسولي وو .

د اسلامي امارت د واکمنۍ په مهال د رياست الوزراء مرستيال او ختيځ زون تنظيمه رئيس مولوي عبدالکبير صاحب وايي :

مولوي نورقاسم زړور او متواضع شخص و ، د خوست په سطحه له مقدمو مجاهدينو څخه حسابيږي چې نه يوازې په خپله سيمه صبريو کې ستر جهادي خدمتونه وکړل بلکې په درست خوست ولايت کې يې د جهاد په پراختيا کې ستر رول درلود ، په کونړ ولايت کې دمسؤليت په مهال هم مجاهدين ترېنه خوشاله و ، نوموړی د کافر په مقابل کې سخت او نه ماتيدونکی او دمسلمان په مقابل کې متواضع و ، دمشر لپاره مناسبه وي چې په سخته مرحله کې خپله ځان مقاومت ته وړاندې کړي ، لکه رسول الله صلی الله عليه وسلم چې د حنين په غزا کې په سخته مرحله کې مستقيم پاته شو ، ټول صحابه په شا لاړل خو رسول الله صلی الله عليه وسلم ځان قربانۍ ته وړاندې او ثابت پاته شو ، په مولوي نور قاسم صاحب کې همدا دايثار او فداکارۍ صفت موجود و .

د خوست ولايت اوسيدونکی شيخ الحديث مولوي افضل حسين صاحب د مولوي صاحب په اړه دوه ليدلي خوبونه داسې بيانوي : يوځل مې ليدل چې له مولويصاحب نه شاوخوا ډير زمريان تاو وي ټول دده پيره کوي مولوي صاحب

له يوه زمري سره پنجه اچولي خو دزمري پنجه ترې لاندې وي او داسې ښکاري چې زمری ورته تسلیم وي.

دوهم دا چې په خوب کې گورم چې يو صندوق وي دمولوي صاحب يو مخالف دښمن يې دخلاصولو هڅه کوي نو څوک په خوب کې ورته ووايې چې دا دنبي كريم صلى الله عليه وسلم له طرفه محترم مولوي صاحب تـه تحفـه ده بل چا ته يې دخلاصولو اجازه نشته.

يو بل ملگري چې بيخي يې مولويصاحب ليدلی نه وو، کله يې چې دکونړ ولايت په وروستۍ نشر شوې ويډيو کې مولوی صاحب وليدلو نولـه يـوه بل ملگري څخه يې وپوښتل چې دا څـوک ده چې غبرېږي هغـه ورتـه وويـل چې دا مولـوي نورقاسـم نـوميږي پـه قـوم صـبرى د خوسـت اوسـيدونکی دی او اوس دکونړ ولايت جهادي مسؤول دی، هغه ورتـه وويـل: چې قسم بالله څـه وخت مخکې مې همدغه سړی له رسول الله صلى الله عليه وسلم سره په خـوب کې څنگ په څنگ ليدلی وو.

د مولوي صاحب اقتصادي ژوند درست عمر د فقر او غربت ژونـد و، دبيت المال له پيسو سره يې سخت احتياط کـاوو، مولوي احـرار وايي کلـه چې دامريکايانود يرغل په اوائلو کې مولوي صاحب هجرت ته اړ شونو د هجرت په ژوند کې يې په يوه داسې خونه کې اړولي وو چې بيخي داوسيدو قابلـه نـه وه، په همدې وخت کې به يې د ډوډۍ پخولو لپاره په خپله شاله غـره څخـه د مـزرو او کيکرو گيډۍ راوړلې، او کله به چې ځينې مجاهـدين ملگري ورسـره ميلمانـه شول، نو په کور کې يې يوازې يو چاينک وو چې په هغه کې به يې چای جوشاوو هم او ميلمنو ته به يې هم پکې راووړ، نو کله به چې چای ختم شو چينـک بـه يـې کور ته يووړ بيا به يې چای جوشولو او ميلمنو ته بـه يـې راوړلو، هغـه مهال چې مولويصاحب دخوست ولايت جهادي مسؤليت پـه غـاړه درلـود بيـا يې هـم پـه خپله له غره څخه خس راوړل.

مولوي صاحب ظاهرا غريبانه او فقيرانه ژوند درلود خو نومـوړي دايمـان په پانگه غني او الله تعالى ورته لوی جرأت او اخلاص ورکـړی و، مولـوي احـرار وايي : يو ځل ديو موټربم جوړولو لپاره دڅلور ټنـه بـاروتو جوړولو او انتقالولو کار وو ملگري ډير وو خو شهيد مولويصاحب په خپله په کار مصروف و، ملگرو ډير اصرار پرې وکړ چې ته کار مه کوه موږ ډير يـو، يـوه سر گروپ ورتـه وويـل چې هر څومره ملگري دې پکار وي دکار لپاره له ما يې واخله خو ته کار مه کوه، شهيد حيدري صاحب ورته په ځواب کې وويـل: چې زه هـم دثواب دحصـول لپاره راغلی يم، آخر هغه دلگی مشر هم له محترم مولويصاحب سره په کارپيـل وکړ.

مولوي احرار د شهيد حيدري صاحب د جهادي تاکتيکي بريدونو پـه اړه وايي : دمحترم مولوي صاحب په قيادت کې يو ځل مجاهدينو دخوست ولايت صبرېو ولسوالی کې يو کور څو ورځې موقتا داسې معرفي کړ لکـه د مجاهـدينو مرکز چې وي، يو موټربم يې جوړ کړ، او دهمدې کور په منځ کې يې ودرولو، او اطاقونو ته يې گڼ شمير بوټونو چپلکې او څپلۍ کيښودلې او يـو فـدايي ملگـری دننه په اطاق کې ناست و، چې د موټر بم شارټي مزی ورسره و، دښمن چې کلـه په دوو درو چورلکو کې امريکايان د چاپې لپاره راغلل او ټول کور ته داخـل شـول چيغې يې وهلې چې تسليم شئ وسلـه پـر زمکـه کيـږدئ، پـه دغـه وخـت کې استشهادي مجاهد موټر بم ته انفجار ورکړ، چې پـه لسـهاوو امريکـايي عسـکر پکې مړه او ټپيان شول وروستـه نـور امريکايـان ددغـو مـړو او ټپيـانو دانتقـالولو لپاره راغلل ملگرو له وړاندې له کور نه دمـاينونو حلقـه تـاو کـړې او ټـول يـې پـه داسې ترتيب برابر کړي وو چې يوځای انفجار وکړي، کله چې امريکايـان دمـړو او ټپيانو په پورته کولو بوخت شول دملگرو له لوري مـاينونو تـه انفجـار ورکـړل شو چې په دې کې هم ښه پريمانه امريکايـان مـردار شـول، دعيني شـاهدانو پـه وينا په دغو کاميابو عملياتو کې دامريکايانو مړه او زخميان له سلو اوښتي وو.

د مولوي نور قاسم صاحب د جهادي ژوند خاطرې او کارنامې خورا ډيري دي، چې د ټولو يادول ددې ليکنې د توان خبره نـه ده، الله تعالى تـه سـوال کـوو چې ددې رښتيني مجاهد او دحق سنگر د رښتيني ساتونکي قرباني او خـدمات په خپل دربار کې قبول کړي او بر کات يې په کورنۍ او ملگرو جاري ولري.

آمين يا رب العلمين

۲۰/۸/۱۴۳۵ هـ ق



# انتــخابـــات !؟؟

## هم نادریز، هم فرمایشي او هم یې عبدالله نه مني!!

شاهد

کابل کې دولسمشریزوانتخاباتو

تر غولونکې نامه لاندې غرب ماډله وزلوبه نوره داسې مرحلې ته رسیدلې، چې په اصطلاح نړیوال دیموکراتیک اعتبار یې هم تر پښنو لاندې شوی او د (ډبل عبدالله) غوندې سر زورې او بدمعاش کاندیدان یې هم پایلې نه مني، (ډبل عبدالله) چې د ګلاآغا شیرزي غوندې بد نام ټوپک سالاران ورسره ددې ډرامې په دوهم پړاوکې یو ځای شوي، په ځغرده تر هغې وروسته چې خپلو امریکایي بادارانو یې ننګه ونکړه او دده پر ځای یې د ګلم جم ملیشو دسرلارې دوستم او نورو کمونستو او شیعه باندېونو له ائتلافي مشر (اشرف غني احمدزي) ملاوتړله، دانتخاباتو په باب خپله نهیلي وښوده، پلویانو یې دپریکون مارشونه وکړل او ده خپله دجون په نهه ویشتمه وویل چې نور نه کابل کې دانتخاباتي کمیسون په رسمیت پیژني او نه دشکایتونو کمیټې، په یوه تازه خبر کې چې همدا نن نړیوالو رسنیو خپور کړ، نوموړي داسې وویل چې :

### د ټاکنو کمېسیونونو پرېکړې نه منو"

دغه ټیم وېلي چې د راتلونکي عواقبو، چې هر څه وي، مسولیت به د ولسمشر او د ټاکنو کمېسیونو پر غاړه وي.

د افغانستان د ولسمشریزو ټاکنو یو نوماند عبدالله عبدالله ډلې ویلي دي چې سرله ننه د ټاکنو او د ټاکنیزو شکایتونو کمېسیونونه په رسمیت نه پیژني او د دوی پرېکړې نه مني.

د عبدالله ډلې د خپلې دغې پرېکړې دلیل دا وباله چې ګواکې د ټاکنو کمېسیون د دوی غوښتنې رد کړې دي. د عبدالله د ټاکنیز ټیم مشر، نصرالله بریالی ارسلایي نن کابل کې یوې خبري غونډې ته وویل چې د ټاکنو کمېسیون دوی ته په یوه ورلېږل شوي لیک کې ددوی ټولې غوښتنې رد کړې دي. دغه خبره تر هغه یوه ورځ وروسته را مخته کېږي چې د ټاکنو کمېسیون وویل، د عبدالله عبدالله درې سره غوښتنې یې پرځای کړې دي.

د ټاکنو کمېسیون همداراز زیاته کړه چې د ټاکنو له بهیر سره د عبدالله د نه همکارۍ په برخه کې ده ته بله کومه پلمه نه ده پاتې.

عبدالله نژدې لس ورځې مخکې د ولسمشریزو ټاکنو په دوېم پړاو کې د هغه په وېنا د (پراخ او سازمان شوي) درغلیو په اعتراض د ټاکنو کمېسیون سره خپلې اړیکې ځنډولې وې.

هغه د ټاکنو د کمیسیون د دارالانشاء پخواني مشر ضیاء الحق امرخېل له دندې د ګوښه کولو او په دوېم پړاو ټاکنو کې د خلکو د ګډون د کچې په اړه د توضیحاتو او اسنادو غوښتنې کړې وې.

نوموړي همداراز په هغو ولایاتونو کې چې د ده په وېنا په کې د ګډون کچه د ډګرو داندازې په پرتله غیر منطقي وه د بیا ټاکنو غوښتنه کړې وه.

ښاغلي امرخیل بیا څو ورځې وروسته له خپلې دندې استعفا وکړه خو ویې وېل چې پر خپل ځان پورې شوي تورونه نه مني او یوائې د ټاکنو د روان کړکیچ هوارولو لپاره خپله دنده پرېږدي.

په همدې حال کې د ټاکنو کمېسیون وېلي دي چې د راتلونکې چهارشنبې په ورځ (د جولای دویمه) به د ټاکنو لومړنۍ پایلې اعلان کړي....

دکابل وارداتي ديموکراسۍ ته دشرم او پيغور خبره داده !!

چې پخپله په دومره لويه امريکا کې چې (۵۲)دومره غټ ايالتونه لري چې نږدې هر يوه يې يو هيواد دی ،خو هلته چې ټاکنې کيږي ،صرف دوه ګوندونه (ديموکراتان او جمهوريت غوښتونکي )او دوه کانديدان (اوباما او جان مکين )پکې دواک سيالي کوي ،خو دافغانستان غونډې يو کوچنی هيواد، چې دځمکې او نفوس له حيثه له خپلو ګاونډيانو څخه هم کم دی، او عام خلک يې داسې سپين زږې مسلمانان دي ،چې دخپل زعامت دټاکلو لپاره داسې غربي وارداتي او اجنبي لوبه هم نا مشروع او غلامي بولي، خو بيا هم پکې لسګونه ګوندونه او لسګونه په اصطلاح کانديدان ټاکنيزې سيالۍ کوي، چې پخپله امريکايان يا ددې اجنبي لوبې صادرونکي تيورسنان به هم څومره دافغانستان داسې سياسي لوبه مسخره آميزه اوخندنۍ بولي او څومره به يې افغان غيرتي قام په ذهنيتونو کې ناپوهه او بې سياسته معلوم شوی وي!! خوحقيقت کې په ټوليز ډول د داسې ملامتويو پړه دکابل په اوسنيو زمدارانو اوګواډاګيانو اچول کيږي او داسې بدنامۍ ددوئ دغلطو سياستونو پايله بريښي .

پداسې حال کې دشمال دبدنامې ټلوالې مکاراو مخکښ (عبدالله خان) دټاکنودکميسون او ددې کميسون پريکړې په رسميت نه پيژني ، دکابل دارګ واکمن (حامد کرزي )د( ډبل عبد الله) په ټيونو نورې مالګې هم وشيندلې اوهمدا دجون په (۲۹)۲۰۱۴ رسنيو کې خپاره شول، چې دکابل دارګ واک به په اصطلاح نوې ولسمشرته د واړه اختر په پنځمه وسپاري، چې دارګ په خبرپاڼه کې رسنيوته دخپاروې لپاره داسې جملې په واک کې ورکړل شوي :

## واک داختر پر پنځمه نوي ولسمشر ته سپارم"

ټاکل شوې ده د سرطان پر ۳۱مه دغلامې ادارې دفرمايشي د ټاکنو وروستۍ پايلې اعلان شي

حامد کرزي ويلي د دموکراسۍ پلي کېدو په لار کې به هيڅ راز هڅې و نه سپموي او ټاکنيز بنسټونه به د قانون پر بنسټ نوی ولسمشر معرفي کړي.

ده زياته کړه چې په دې سره به ''زه د کوچني اختر پر پنځمه واک [نوي ولسمشر] ته وسپارم."

## نړيوالو رسنيو وليکل چې :

د افغانستان د ولسمشرۍ دويم پړاو ټاکنې د جون پر ۱۴مه ترسره شوې، خو له ټاکنو وروسته عبدالله عبدالله اعلان وکړ ، دا چې د ټاکنو کمېسيون يې غوښتنې نه دي منلې ، دوی ورسره ټولې اړيکې ځنډوي. ښاغلي عبدالله د ټاکنو له کمېسيون نه غوښتي و ، چې د ټاکنو کمېسيون د دارالانشاء مشر ضياء الحق امرخيل دنده دې وځنډوي.

بل خوا عبدالله عبدالله ټينګار کړی و، چې د کمېسيون له لوري په ټاکنو کې د اووه ميليونه ګډونوالو شمېره واقعي نه ده او کمېسيون بايد په دې اړه توضيحات ورکړي.

## ابتدايي پايلې

ده دغه راز د ټاکنو کمېسيون نه غوښتي و، په هغو يو شمېر ولايتونو کې چې د تېر ځل په توپير په کې ډېرو خلکو رايې کارولي هم معلومات ورکړي.

د ټاکنو شمېرلو بهير روان دی او د افغانستان د ټاکنو کمېسيون اعلان کړی دی، چې له مهالوېش سره سم به د دويم پړاو ټاکنو لومړنۍ پايلې د چارشنبې پر ورځ اعلان کړي.

ټاکل شوې د شکايتونو د اورېدو کمېسيون له لوري د شکايتونو ارزولو وروسته د انتخاباتو خپلواک کمېسيون د سرطان پر ۳۱مه د ټاکنو وروستۍ پايلې اعلان کړي.

که څه هم د ټاکنو خپلواک کمېسيون وايي چې د عبدالله عبدالله درې واړه غوښتنې يې پوره کړي او د دې پلمه نه ده پاتې چې ښاغلی عبدالله دې له دغه بهير سره يو ځای نه شي.

خو عبدالله وايي غوښتنې يې په بشپړ ډول نه دي منل شوي.............

دکابل دغلامې ادارې دټاکنو دخپلواک کميسون اداره وايي :چې دعبدالله ټولې غوښتنې يې منلې، نوره ورته کومه

داسې بهانه نده پاتې، چې دايې له امله پرېکون وکړي ،ددې اداري وياند محمد نور داسې وايي :

## د عبدالله درې واړه غوښتنې منل شوي"

د ټاکنو د خپلواک کمېسيون وياند نور محمد نور وايي ښاغلي عبدالله ته يې هغه ليکلي لاسوندونه سپارلي چې په ټاکنو کې تر ۷ ميلونو د ډېرو وګړو د ګډون پخلی کوي.

د افغانستان د ټاکنو خپلواک کمېسيون وايي د نومانند عبدالله عبدالله درېواړه غوښتنې د دوی له خوا منل شوي او نوره پلمه نشته چې له ټاکنيز بهير سره پرېکون روان وساتي.

د ياد شوي کمېسيون وياند نور محمد نور وايي ښاغلي عبدالله ته يې هغه ليکلي لاسوندونه سپارلي چې په ټاکنو کې تر ۷ ميلونو د ډېرو وګړو د ګډون پخلی کوي.

خو د ښاغلي عبدالله ټاکنيزه ډله وايي چې تر دې مهاله يې ان يوه غوښتنه هم نه ده منل شوې.

مګر د ټاکنو د خپلواک کمېسيون وياند نور محمد نور وويل "د ښاغلي عبدالله د ټاکنيزې ډلې درې واړه شرطونه منل شوي، د دارلانشا د رئيس مسئله وه هغه استعفی وکړه، دويمه موضوع ټاکنو کې د خلکو د ګډون په اړه د معلوماتو وه، کمېسيون تر اوو ميلونو د ډېرو کسانو خبره کړې وه چې په اړه يې په ليکلي بڼه جزييات ورکړل شول او داړ مو ورکړ چې په دغه بهير کې تر اوو ميلونو ډېرو خلکو ګډون کړی و، دريم موضوع په ولايتي کچه د خلکو د ګډون وه چې په دې اړه هم معلومات ورکړل شول څکه نو بله پلمه نشته او د ښاغلي عبدالله ټاکنيزه ډله بايد ژر تر ژره د ټاکنو له ولسواک بهير سره يوځای شي".

خو د ښاغلي عبدالله ټاکنيزه ډله وايي چې د دارالانشا مشر د درغلۍ کوونکو د شبکې يوازې يو کس و.

د ښاغلي عبدالله له ټاکنيزې ډلې نه فضل الرحمان اوريا وويل چې د دوی يوه غوښتنه هم نه ده منل شوې او نه هم د دوی د غوښتنو په اړه اړين لاسوندونه ورسپارل شوي دي.

په همدې حال کې په خپله عبدالله عبدالله هم يوې غونډې ته وويل چې په ټاکنيز بهير کې د بيا ورګډولپاره يې خپل شرطونه وړاندې کړي او په وينا يې که څوک يې نه مني نو مسووليت به يې ورپه غاړه وي.

د ټاکنو د خپلواک کمېسيون وياند نور محمد نور بيا وايي "دا مهمه نه ده چې ټاکنې څوک ګټي او څوک بايلي بلکې مهمه دا ده چې په افغانستان کې د ټاکنو بهير بريالي شي چې په وينا يې دا خبره ټول مني.

داچې حقيقت کې هم دويم ځليزو غربي ټاکنو کې رښتياهم له (۷۰۰۰۰۰)اوو ميلونو څخه زياتو خلکو ګډون کړی اوکه نه داهم هسې يوه غربي ډرامه ده! اواصلاً دامارت غوښتنې ته ولس لبيک ويلی ،چاپکې ګډون ندی کړی اوجعلي رأيې داشرف غني په طرفدارۍ صندقونو کې اچول شوي يوه نادريزه ربړه ده، چې عبدالله يې نه مني، خو خارجي باداران او ګوډاګيان به يې پرې طوعاً او کرهاً ومني اوخلک به هغه څوک دکابل دواک په ګدی ناست ويني، چې امريکا او لويځ يې غواړي، اودابه داسې څوک وي، چې هم به دلويځوعسکرو شتون ته دقانونيت اسناد پيدا او ورسره لاسليک کړي ،او به داسلامي نظام په وړاندې امريکايانو ته داسې حاضر باش غلام وي ،لکه (کمال اتاترک )چې انګريزانوته و،اوهغه څه يې ورته وکړل چې نن هم پرې امت کړيږي !وروسته به هر څه دلمر غونډې وځليږي !

واقعيت دادی چې دټولټاکنو لوبه يوه تېرايستونکې حربه ده ،دا ددې لپاره پيل شوې، چې افغانان پرې مصروف وساتل شي او امريکايان پدې خړو کې خپل کبان ونيسي ،دلته چې افغان قام دسپين بيرغ لاندې دجهاد هوډ کړی، دجهادي سيلاب مخې ته همداسې حربي امريکايان دشګو بند جوړوي ،خو پدې دې هم پوه شي، چې داسې تجربي ددوئ نه مخکې پيرنګيانو او روسانو هم کړي، خو پايلې يې ټولې دنيا کتلې ،چې ډيره نږدې به انشاءالله تعالی ولسونه ددې نتايج هم ګوري او دحقايقو تل به کوزشي !




ابو هریره(رض) وایي: ما له ابو موسی اشعري(رض) نه اته لکه درهم راوړل او د امیر المومنین حضرت عمر فاروق(رض) په مخکې مې کېښودل حضرت عمر(رض) وپوښتل: دا دې څه راوړل؟ ما ویل: اته لکه درهم! حضرت عمر(رض) وویل: ایا پاک دي، ما وویل: هو پاک دي!، په دې شپه تر سهاره حضرت عمر(رض) ته خوب ورنغی، کله چې د سهار اذان وشو، خپلې میرمنې له هغه وپوښتل: بیګاه شپه ولې ناارام وې؟ حضرت عمر (رض) په ځواب کې وویل: دخطاب ځوی (عمر(رض)) ته به څنګه خوب ورځي، چې په لومړي ځل مسلمانانو ته دومره زیاتې پیسې راغلې چې د اسلام له پیل نه تر اوسه ساري نلري، که عمر (رض) ته په دې وخت کې مرګ راغلی او دا مال هم داسې پاتې شو،نو په سمه توګه به یې مسلمانانو ته خپل حقوق نه وي رسولي او ځان به د خدای (ج) له مواخذې ونه ژغورلی شي.

کله چې نوموړی (رض) د سهار لمانځه نه فارغ شو، د رسول الله (ﷺ) څو تنه صحابه تري راتاو شول، هغوئ ته یې وویل: نن شپه د خلکو دومره پیسې راغلې، چې د اسلام له پیل نه تر اوسه نه دې راغلې، مشوره را کړئ چې څنګه یې وویشم. ځما رایه داده چې خلک راوغواړو او پرې وویشل شي ، صحابه وو وویل: امیرالمومنین داسې مه کوه، نن ورځ خلک اسلام ته ننوزي ، له دېنه زیات مالونه به راشي او دا به ګرانه وي، چې په یاد کې پاتې وي، چې چاته څومره شی ورکړل شوی؟ له دې وجې لومړی په یو راجستر کې د خلکو نومونه ولیکه، څو دا معلومه وي چې چاته څومره ورکړل شوې؟ د اخیستونکو د نومونو سره یوځای اخیستل شوې پیسې دې هم یاداښت شي، حضرت عمر (رض) وویل : دا خو ښه نظر دی، راجستر جوړو، دامشوره را کړئ چې شروع له چانه وکړو؟ ځینو ویل: له خپل نوم نه شروع وکړه، ځکه ته د بیت المال متولي یې، ځینو ویل ستا خوښه ده چې له هر چانه شروع کوې، کولی شې ، حضرت عمر(رض) وویل: داسې نه کوم، بلکې د رسول الله (ﷺ) نه شروع کوو، بیا دهغه وروسته چې هرڅوک رسول الله(ﷺ) ته ترټولو زیات نیږدې وی، هغه لیکو!

حضرت جبیر بن حویرث(رض) وایي: حضرت علي(رض) راجستر جوړولو سره مخالفت وښود، هغه ویل: مسلمانان راټول کړه او ټولې پیسې په هغوئ باندې وویشه، حضرت عثمان (رض) د راجستر جوړولو نظر غوره وګاڼه، حضرت ولیدبن هشام بن مغیره(رض) وویل: زه شام ته لاړیم، ما هلته پاچایان لیدل به چې هغوئ به دهر کار لپاره جلا کتاب درلود، هغوئ خپل پوځ هم منظم ساتلی وو، ته هم داسې وکړه، حضرت عمر (رض) د حضرت ولید رایه قبوله کړه، حضرت عقیل بن ابي طالب، حضرت مخرمه بن نوفل او حضرت جبیر بن مطعم یې ددې کار لپاره وګومارل، داپه دې چې هغوئ د ریواړو ته د قریشو، نسبونه معلوم وو، تر نورو مخکې یې د بنوهاشمو نومونه ولیکل، بیا د ابوبکر صدیق(رض) او دهغه دقوم نومونه ولیکل شول ، لیکن خپل قوم (بنوعدي) دلیکلو نه یې انکار وکړ، په دې سره د بنوعدي قبیلې خلک ورته په شکایت راغلل، په ځواب کې یې هغوئ ته وویل: اې بنوعدي! تاسې غواړئ ځما دخیټې له برګه سواره شئ، او له نورو خلکو یې مخکې وخورئ! او ځما نیکۍ برباد کړئ، هیڅکله به داسې ونکړم، خپل او ستاسې نومونه به له ټولو وروسته لیکم، په دې کې کومه بدې ده چې زمونږ نومونه دې له ټولو وروسته وي، مونږ ته چې هرڅومره عزت او احترام په برخه شوی دی، دا د رسول الله (ﷺ) له برکته، دغه وجه ده چې د رسول الله (ﷺ) کورنۍ شرافت او عزت مونږ ته ګران دی، هو! مونږ څوپښته د رسول الله (ﷺ) سره خپلوې لرو،خو باید په یاد ولرو چې یوازې پخپلوئ تکیانشي کیدای، بلکې د الله (ج) په نزد چې د کومې مرتبې او درجې لوړې دې دهغو ترلاسه کولو لپاره کوښښ وکړئ،ولې هرهغه څوک چې په اعمالو کې شکته اوپاتې وي، هغه ته د نسب لوړوالی کومه ګټه نه رسوي. (حیاة الصحابه)

# رسنۍ، د امریکا د جګړې زبرځواکه وسله !!

انجینر ع – ق

په تکسي کې د ښار له یو ګوټ څخه بل ګوټ ته روان وم چې د کرزي اونیزي ویناوې مې له راډیو څخه تر غوږ شوې. کرزي د رسنیو وده او د بیان آزادي يې د ۱۳ کلن واک غټه لاسته راوړنه بلله. یو سپین ږیری سړی چې خواته مې ناست و په بیړه راته وویل: «پخوا به یې د خلکو خولو ته کولپونه اچول او د واکدار و غوږونه به پرانستي وو. کرزي آسانه لار خپله کړې، خپل او د کابینې غوږونو ته یې کولپونه اچولي او د خلکو خولې یې پرانستې پریښې.»

په افغانستان کې په تیرو ۱۳ کلونو کې د رسنیو بې سارې ودې په اړه ډیری داسې خبرې شته چې له خلکو پټې پاتې شوې .ددې لامل چې نن د مرخیرې په څېر سلګونه خپرونې، راډیوګانې او تلوېزیونونه سر را پورته کوي او د امریکا او ملاتړو لخوا یې تمویلیږي ممکن نده چې پوه شو مګر داچې د امریکایي نیواک له رسنیو څخه ناوړې ګټې اخیستنې تاریخ ته لنډه کتنه ولرو چې نن د «رسنیو امپریالیزم» په نوم یادیږي .

هغه وخت چې د روسانو چوپړان په واک کې وو، هغوی د روسي ښتنانو په لار ښونه هر مخالف غږ چوپ کاوه او هیڅ «آزادې » رسنۍ شتون نه درلود. دې نواړې (خفقان) د تنظیمونو دواک پرمهال د منځنۍ پیړۍ پر څېر دوام وموم. ولې د څولسیزو را پدیخوا امریکایي نیواک په نوي لار و چارو نور ملتونه په زنځیرونو تړي چې له ۱۳ کلونو راپدیخوا په افغانستان کې له ډول ډول شکلونو سره مخ یو.

امریکا د پوځي سلاح کوټ تر څنګ، له رسنیو څخه د ملتونو په برده کولو(اېل) کې د وسلې په توګه خوراغټه ګټه پورته کوي . دا هیواد مځکې لدې چې کوم ځای ونیسي هتله خپلې تبلیغاتي رسنۍ استوي تر څو د «بیان آزادي»، «رسنیو آزادي» او «دموکراسی»، له درواغجن شعار څخه په ګټه اخیستنې د تیري او د ملتونو د بردګۍ لار هواره کړي او خپلو شیطاني موخو ته در سیدو لپاره ور ته داله ټولو آسانه او ارزانه لار ده. هغوی له څو لسیزو را پدیخوا په تجربې سره موندلې چې د خلکو برېنګولو او مغزوینځنې لپاره کره وسیله، له رسنیو ناوړه ګټه ده. همدې موخې ته رسیدو لپاره، په کال ۱۹۵۰ کی «اروپا آزاده راډیو» تمویل او په لار واچول شوه چې نن ورځ هم د «آزادی راډیو» تر نوم لاندې په لسګونه هیوادونه او د هغې ډلې څخه زمونږ په هیواد کې له زهرو ډکې خپرونې لري .

په تاریخ کې دلومړي ځل لپاره، امریکا په ۱۹۹۱ کی د خلیج په لومړۍ جګړه کې، د "سی.ان.ان" تلویزیوني چینل چې تر هغه مهاله یواځنی تلویزیون وچې ۲۴ ساعته خپرونې یې لرلې، نړۍ نیولو په موخه په لار واچوله. له مدرنې تکنالوجۍ او سپوږمکۍ نه پر ګټه اخیستنې، د امریکا پوځ د عراق د جنګ له ډګر څخه فلتر شوي اودهغوی د سیاستونو سره همغږی خبرونه د عامو وګړو د ذهنونو بمبارولو په خاطر خپرول. ایریک مار ګولس د «له رسنیو څخه د وسلې په توګه کاراخیستل» تر نوم لاندی مقاله کې چې د ۲۰۰۱ کال د اکتوبر په ۲۱مه په «تورنتو ستار» کې خپره شوې داسې لیکي :

«واشنګټن کرنلاره لرله : هغه بریا چې په ۱۹۹۱ کې د خلیج جګړې پر مهال یې د عراق پر خلاف د خبرونو د انحصار، فلتر او بېنې ور کونې له لارې تر لاسه کړې وه په افغانستان کې هم تکرار کړي. تر نن ورځې هغه شمېر عراقیان چې د امریکایانو په بمباریو کې وژل شوي دیو راز په څېر پاني دي »

د اړیکو په عصر کې چې رسنۍ په داسې توګو بدلې شوې چې پر ته له اجازې د خلکو کورونو ته ننوځي، د هغوی دماغ او ذهن چاپیروي او په غیر ارادي او غولوونکي ډول فکرونه او لید په خپله خوښه چپوي. شوار تز، امریکایي لیکونکی او د تلویزیوني خبر تیاوو پوه په «رسنۍ، دویم خدای» کتاب کې لیکي:

«د خدای په څېر، یوه رسنۍ د میلیونونو خلکو پام یوې پیښې ته په همغږي ډول کولای شي د جګړې لاره بدله کړي، یو ولسمشر او یا پادشا لاندې راکاږي، خوار او ذلیل یې ته بوځي او ویاړلي سپک کړي.»




ګراف ښایي چې په ۱۹۸۳ کې په امریکا کې له ۵۰ څخه زیات شر کتونه د رسنیو څښتنان وو ولې په ۲۰۰۴ کې دا رقم ۶ شر کتونو ته را ښکته شو. ددې مانا داده چې رسنۍ انحصاري شوې.

د امریکا په ښکاره «آزادو» رسنیو کې، درواغ، ځان ښودنه، سانسور او مرغېانه په نوي او سیستماتیک ډول تر سره کېږي. پروفیسر نورمن سالومن او ریس ارلیچ په «عراق برید: هغه څه چې رسنیو تاسو ته ندي ویلي» کتاب کې د یو امریکایي خبریال له خولې چې د هغه هیواد له ښکاره سانسور نه په تنګ راغلی وو داسې لیکي:

«هر وار چې وړ اندیز کوم چې د عراق پر عامو وګړو د بندیزونو مرګوني اغیزونو پر اړه راپور چمتو کړم نو مشران مې راته وایي چې دا خبر زوړ شوی دی حال داچې هغوی په کراتو د عراقي چارواکو د فساد او ظلم خبرونه خپروي او له دې کاره نه ستړي کیږي.»

هلن توماس، د «یونایټدپرس انټرنشنل» نامتو خبریال و، چې څو لسیزې یې د سپینې ماڼۍ خبرونه ویل، په ۲۰۰۲ کې کله چې د عراق ضد جګړې خوځښت سره یوځای شو، د ام.آی.تی پوهنتون په وینا کې یې اعتراف وکړ: «ما تر اوسه ۵۰ کاله کیږي چې ځان سانسور کړی.»

امریکا چې ځان د «آزادۍ زانګو» ګڼي، په هغه هیواد بدله شوې چې یو سل میلیارډرانو یې د ټولنې ټوله شتمنۍ په لاس که نیولې او نورو ملتونو ته د وژلو او ویجاړې ماشینونه استوي. کانیا دی‌المیدا (Kanya D'Almeida) په «انټر پریش سرویس» (۲۰۱۲ کال د جنوری ۲۱) داسې لیکي:

«په هغه هیواد کې چې د ۱۷۸۷ کال اساسي قانون ور ته ژمنه ورکړې وه چې د خلکو لخوا او د خلکو لپاره به وي، یو سلن شتمنو د دموکراسۍ ټول بنسټونه غلا کړل.»

په لویدیځو رسنیو کې د جګړې ضد میلیونو وګړو خوځښتونه، «وال اسټریټ غورځنګ»، ګلوبلایزیشن پر ضد پراخ لاریونونه چې د هرې ورځې په تیرېدو سره د هغه هیواد ټول غټ ښارونه یې د جګړې په

ډګر بدل کړي، هیڅ خبر نشته. او که چیرې خبر یې هم خپور کړي هغوی بلواګر نوموي او کوښښ کوي دا غور ځنګونه بې ارزښته وښايي.

پروفیسور نوام چامسکي، امریکایي نامتو فکر کوونکی چې د امریکایي رسنیو د تبلیغ په اړه یې ژوره څېړنه کړې، د «د ټولنیزو رسنیو په واسطه د خلکو برمته کولو لس لارې» تر نامه لاندې مقاله کې، چې یو مهم اصل یې افغانستان کې د ډیرې رسنیو لخوا هو به هو پلي کیږي، داسې تشریح کوي:

«د ټولنې د لاربښوني اصلي عنصر د خلکو پام له اساسي کړاونو او سیاسي او اقتصادي هوکړو نه د کم ارزښته ټولنیزو مسایلو په لور کږول دی. د خلکوم پام بل لوری ته وړل ددې لپاره زیات ارزښت لري چې ښاریان نشي کولای د علومو، اقتصاد، روان پوهنې، نیوروبیولوجي او سیبرنتیک په اړه معلومات ترلاسه کړي.»

په امریکا او نورو غټو هیوادونو کې د رسنیو دیوان هغه خلک دي چې د هیواد اقتصادي شارګ په منګولو کې لري او د غټو انحصاري شرکتونو او وسلې جوړونې کارخانو څښتنان دي. هغوی د ډیرې پانګې، عصري تجهیزاتو، مخکې تللې توکو او سپوږمکۍ او د ازمایلو شوو کار کونکو په ګومارلو سره د نړۍ پیښې د جګړیزو هیوادونو په ګټه تر پوښښ لاندې نیسي او په بیوزله هیوادونو کې د مالوماتو په راکړه ورکړه پوره واک لري.

پروفیسر نورمن سالومن، امریکایي څیړونکي په «تاسو تل درواغ ویلي» کتاب کې، د امریکا د رسنیو شپږ غټ شرکتونه تر څیړنې لاندې نیولي چې ډیر شمیر مالومات په انحصاري شکل په واک کې لري. دا شپږ شرکتونه د عامه وګړو فکرونه په واک کې لري او د خپلو اقتصادي ګټو په لور یې بیایي. په نړیوالې پیړۍ کې، دا رسنۍ یوازې امریکا پورې تړلې پاتې ندي بلکې د ټولې نړۍ د خبرونو په راکړه ورکړه پوره واک لري.

لدې شپږو زبرځواکو رسنیو څخه یو «نیوز کارپوریشن» دی چې روبرت مرداک پورې اړه لري. هغه د نړۍ د رسنیو د سلطان په نوم یادیږي او ډیرې شمیر تلویزیوني، راډیویي چینلونه او ورځپاڼې او مجلې په ټوله نړۍ کې په واک کې لري. د هغه د رسنیو امپراتورۍ ډیرې شمیر مالومات په انحصار کې لري چې په پوره ځیر سره د خلکو ذهنونو کې هغه څه ځای په ځای کوي چې د نیواکګرو دولتونو او لویو شرکتو په ګټه وي.



د سعد محسني موبي ګروپ چې د «طلوع»، «طلوع نیوز»، «لمر» چینلونه او د «ار کوزیا»، «آرمان شهر» او نوري راډیوګانې په لاس کې لري او له ۵۰ سلنې زیات شمیر کتونکي یې ځان ته رابښکلي دي له «نیوز کارپوریشن» سره نږدې اړیکې لري. ویل کیږي چې مرداک په موبي ګروپ کې ۳۰ سلن لیکمن دی. له همدې کبله «طلوع» د نورو چینلونو پر تله د امریکا د تبلیغاتو مټ کرځیدلی او د یو.ایس.اید لخوا ورته میلیونونه دالر مرسته کیږي. په نړۍ کې د امریکا د لومړۍ درجې رسنیو پر څیر، «طلوع» هم په پلان شوې کړنلاره د خلکو فکر هغه لوري ته بیایي چې د امریکا نیواکګر پلانونه ورته اړتیا لري.

د رسنیو دیوان د عامه وګړو د فکر نیولو په اړه پراخې څیړنې کوي او د خلکو تیروتلو لپاره نوي او ژورې لارې چارې منځ ته راوړي. کورت لوین (Kurt Lewin) په خته آلماني د امریکا اوسیدونکي یو تیوریسن و چې نظریه یې د هغه فاشیستي میل نه سرچینه اخلي او د سي.آی.ای په خدمت کې دی. هغه د «وخت او اخلاق کتلځای» په نوم کتاب کې د ملت او مشرانو د روحې ځپلو لپاره داسې لارښونه کوي:

«د دار استراتیژي په واسطه د ملي روحې ځپلو یوه طریقه ددې تاکتیک دقیق پلي کول دي: باید انسان تل لالهانده او راتلونکي ته او

هغه څه چی په راتلونکی کی پیښیږی د بی اعتمادی په حالت کی وساتل شی. بر سیره پر دی که چیری په کړنو کی یو اندازه پړ ک او د ښو چاور ژمنی یو بل سره نغښتی وی د یو بل ضد خبرونه د راتلونکی وضعیت بنسټ ګونګوی. پدی حال انسان خپل فکر له لاسه ور کوی چی یوه مشخصه کړنلاره به هغه موخی ته ور سوی او که نه. پدی حال هغه خلک چی مشخصه کړنلاره لری او د خپلی موخی لپاره له سره تیری دی هم نشی کولای پر مخ لاړ شی او ټپ پاتی کیږی.»

په افغانستان کی د کورت لوین دا خاینانه تیوری هو بهو د امریکا




او ګوداګیانو لخوا د هغو رسنیو له لوری چی د امریکا له سفارت څخه پیسی اخلی پلی کیږی. خلک «لالهانده او د بی اعتمادی په حال کی» ساتل، «ویره له راتلونکی» او... دقیقا د ټولنیزو رسنیو په څواک د نیواکګرو یو موټی کرایی «کارپیژندونکو» او «شنونکو» لخوا «چپه او راسته خبرونو» او د ټولنی د عینی واقعیت نه لری شننو له لاری رواج مومی چی د امریکا لوټیدونکو کړنلارو ته لار هواره کړی ده.

د افغانستان تلویزیونونه خپلی ژبی تړی تر څو خلک کاڼه پاتی شی.

ځیړ نی ښایی چی د امریکا وګړی د نړی پر سطح د نړیوالو مسایلو په هلکه ډیر لږ پوهیږی. د هغه هیواد رسنیو د خلکو پام کم ارزښته او تفریحی پروګرامونو کی بوخت کړی او د نړی د پیښو په هکله هغوی ته مالومات نه ور کوی. په هغه هیواد کی چی د خلکو فکر د سوداګریزو رسنیو په ولکه کی وی ددی توان نلری چی ټولنیزی پیښی وشنی او دولت ته دا فرصت برابروی چی هغوی په آسانی سره وغولوی او په خپله خوښه هغوی بوځي. یلیام ج. لدرر د خپل هیواد د خلکو بی خبری د «ګډانو ملت» په کتاب کی تر ځیړنی لاندی نیولی.

د امریکا دولت د خبر له شر کتونو او د ورځپاڼو له کار کونکو څخه د څارونکو په توګه کار اخلی. کارل برنشتین (Carl Bernstein) د «واشنګټن پوسټ» ورځپاڼی لیکونکی او د پولیتزر انعام ګټونکی، په ۱۹۷۷ کال کی د خپلو ځیړنو، چی د سی.آی.ای لخواد ورځپاڼو کار کونکی د څار ګرو په ځیر ګمارلو په هکله یی کړی وی، پایله یی د «سی.آی.ای او رسنۍ» تر نوم لاندی خپره کړه داسی لیکی:

«د خبریالانو څخه ناوړه ګټه اخیستل کیده تر څو بهرنیان د څار ګرو په ځیر په کار و ګماری، مالومات تر لاسه او وځیړی او درواغ مالومات د بهرنیو چارواکو تر منځ خپاره کړی. دوی زیات شمیر په پټه له سی.آی.ای سره هو کړه لیکونه لاس لیک کړل او وعده یی ور کړه چی هیڅکله به دا راکړه ور کړه ښکاره نکړی.»

په هغه هیواد که چی خبرونه په سوداګریزو توکو بدل شی او درواغ او دوه مخیزه پر رسنیو دروند سیوری اچولی وی، څرنګه امکان لری چی بل هیواد ته «آزادی رسنۍ» او د «بیان آزادی» راوړی؟ هغه څه چی کرزی خپله ۱۳ کلنه لاسته راوړنه بولی په حقیقت کی د امریکا لاسته راوړنه وه چی د عامه وګړو فکر یی سمبال کړ او له هغوي نه یی ناپوهه، خنثی، لاس پوڅی او د امریکا خوښ او بی کاره خلک جوړل کړل. امریکا زمونږ په هیواد کی میلیونونه ډالر په خپله تبلیغاتی جګړه کی لګښت کړی او تلویزیونی او راډیویی چینلونه یی په لار اچولی تر څو لدی لاری د ټولنی واک او د خلکو روحیه په لاس کی و نیسی او په خپله خوښه یی و څرخوی.

# د ځان په ګټه قانون!

قدرت الله

په افغانستان کې له دې سره سره چې په تیرو کلونو کې نظام او ځایي اداري شخصي شوي دي اوس اوس کوښښ کوي چې د دوی په لاس جوړ شوی قانون هم کرار کرار شخصي شي ، دا خبره مې ځکه وکړه چې پرون به مو د عبدالله له لوري د خبرو د راویستو خبره په رسنیو کې اوریدلي وي.

د ټلیفون خبرې په اساسي قانون کې خوندي دي، خو پرون عبدالله وکولای شوای دا خبرې راوباسي او بیا یې ټول عالم ته ور وښیي، د عبدالله دا کړنه ددې ښودنه کوي، چې شته اردو، پولیسو، امنیت او نور ټول یوازې د یوې اداري په چوپړ کې دي.

له معمول سره سم په نړۍ کې قانوني نظام او قانون جوړونه د دې لپاره وي څو وکولای شي د یوې ټولنې د اشخصاو د غوښتنو د تصادم مخه ونیسي او له دې ډول تقابلونو څخه د مخنیوي او ډاډ په ډول را ښکاره شي. نو قانون ځکه ډیر ارزښت لرونکی رول لري چې په هغه کې د یوې ټولنې ټولو مصالحو ته پام کیږي او په ترڅ کې یې د مصالح کلي، ځینې شته او نه شته توکي د قانوني موارد و په توګه په پام کې نیول کیږي او خلک هم پوهیږي چې دا باید او نباید په عملي کړي او د ورځینو کارونو په ترڅ کې ورته پام وکړي.

د یوې ټولنې د ټولیزو مصالحو په پام کې نیولو سره، او د یوې ټولنې د لومړنیو اړتیاوو په پام کې نیولو سره، او بیا په قانون کې ددې اړتیاوو درج کول د دې لامل کیږي څو ټول قانون ته درناوی وکړي او د قانون په پلي کیدو ځانونه ملزم وويني.

په نړۍ کې د ټولو شته ټولنو پر خلاف چې د یو سیاسي واحد په شتون کې د هیواد په نوم په نړۍ کې شته او هر یو د خپل خاص ژوند او خپلو اړوندو کړنو په اړه سازماندهي کوي هر یوه ځان ته قوانین وضعه کړي دي خو د افغانستان ټولنه بیا د قانون د منلو په برخه کې یوه مستثنا ټولنه بلل کیږي.

عمومي اند دا دی چې په افغانستان کې کله هم قانون په دې نه دی بریالی شوی څو د اشخاصو او افرادو له ارادې پورته وي. په ځانګړي ډول په دې برخه کې په جرأت سره ویلای شو چې د افغانستان د ستر ملت په منځ کې کله هم قانون په دې نه دی توانیدلی چې د داسې افرادو له کړو وړو سره چې ځای او مقام لري برابر وي.

نو همدا لامل دی چې په افغانستان کې قانون ماتونه، د قانون نه مراعت ، له قانون څخه تیښته او قانون ته نه پاملرنه یو معمول او پیژندل شوی کار پیژندل شوی که چیرې دا ډول کړنې څوک و ویني نو هیڅوک به له حیرانتیاهک پک نشي.

په هغه تعدیل کې چې په دې وروستیو کې په ملي شورا کې د ټاکنو په قانون کې راوړل شوی دی، کیدای شي یو لامل یې هم قانون ته نه پاملرنه وي.

داسې ښکاري په افغانستان کې قانون ته نه پاملرنه چې ویل کیږي د نورو ټولنو پر خلاف عمل کوي زموږ په هیواد کې په قانون کې ملي مصالح په پآم کې نه نیول کیږي او نه هم د ملي مصالحو پر بنسټ رامنځ ته کیږي بلکه کوښښ کیږي په قانون کې د افرادو او اشخاصو مصالح په پام کې ونیول شي. نو دا لامل دی چې په ټولنه کې د قانون منلو انګیزه نه وي او که چیرې ونه منل شي نو

لومړنی ذهنیت چې ددې مسلې او د ټاکنو د قانون د بدلون په اړه رامنځ ته کیږي د هغو کسانو په ګټه ده چې د ولسي جرګې غړیتوب لري خو تحصیلي سند نلري. که چیرې سند نه وي دا کسان په نورو درو کې له استازیتوب څخه بې برخې کیږي. نو استازو په یوه کاري دوره سره ځان ته دا ستونزه حل کړې او دا وخت یې د پوهنتون د تحصیل له دورې سره ورته خبره بللې څو په راتلونکې ځان پکې وساتي.

دې ته په کتو سره د ولسي جرګې په یوه کاري دوره کې چې ډېرى وختونه یې رخصت، ناسوب وي، یا هم په



هیڅوک نه وایي چې اسمان به ځمکې ته را کوز شي دا لړۍ په افغانستان کې همداسې دوام مومي.

ویل کیږي استازو اوس اوس د ټاکنو په قانون کې ویلي دي هغه کس چې ولسي جرګې ته ځان نوماند کوي باید د ولسي جرګې د یوې کارې دورې تجربه ولري او دوی دا تجربه له لیسانس سند سره برابره کړې. په ملي شورا کې د یوې دورې شتون او بیا هغه د لیسانس له یوې څلور کلنې دورې سره پرتله کول ډېره عجیبه خبره ده. ځکه د ولسي جرګې په دوره کې باید استازي، په کار پوه او اکاډمیک ډول د حقوقي، اقتصادي او ټولنیزو موضوعاتو په اړه پوه وي. خو په تحصیلي دروه کې یو محصل په اکاډمیک ډول په خپله تحصیلي برخه کې د انساني علومو په برخه کې مهارت پیدا کوي.

شخصي کارونو چې له دندې سره یې اړوند نه وي بوخت وي او له حکومتي چاروا کو سره په ځینو وختونو کې کمې اړیکې لري او څه وخت هم د قانون په اړه بحثونه کوي یا د حکومت کړه وړه څاري، دا استنباط رامنځ ته کوي چې دا قانون د اشخاصو او افرادو د شخصي ګټو لپاره تصویب شوی دی او نشي کولای د هیواد ټول عمومي مصالح تر خپل پوښښ لاندې راولي.

برنیو خبرو ته په کتو سره یو لوري ته د استازو شخصي کړنې، بل لوري ته د نظام، افرادو، سیاستوالو او نورو کړنې به یو ورځ نه ورځ په شعوري ډول هیواد د سختې تباهۍ، بې اتفاقۍ، یو وار بیا کورنۍ جګړې، پاټک سالارۍ او جنګ سالارۍ کندې ته ور ټیل وهي.

# د روسيې پوځي ځواک ته لنډه کتنه

لطيف عزم

وړاندې تردې چې د روسيې په فوځي توان لنډه رڼاواچوو ، مناسبه ده چې د روسيې اوسنی جغرافيوي موقعيت هم لږ اوډېر تاسو درنولوستونکو روښانه کړو. د روسيې فدراسيون ، د اسيااواروپاپه شمال کې شتون لري اود مساحت په لحاظ د نړۍ دلوی هيوادپه توګه پېژندل کيږي چې تقريباً د کاناډاهيواد په تناسب دوه برابره وسعت اومساحت لري .

روسيه د ناروې ، فنلاينډ ، استونيا ، لتوانيا ، لهستان ، بلاروس ، اوکراين ، ګرجستان ، ازربايجان ، قزاقستان ، چين ، اوشمالي کورياهيوادونه ورسره ګاونډيتوب لري .

دغه رازروسيه ، دابوله لاري دامريکا له (الاسکا) ايالت سره هم ديوه ګاونډي هيوادپه توګه ځان نښلوي .

روسيه په دې سربيره چې د نړۍ دتيلو اوګازو له مهمو توليد کونکواوپه خاصه توګه اروپاته ديوا ځيني صادرونکي هيواد په توګه ځاى لري ، دامنيت شورا ديوه دايمي غړي هيواد په شکل کې د نړۍ په قضاياوو کې مهم نقش اورول لري .

پوځي ځواک ؛

د روسيې نظامي ځواک په دريوبرخوويشل کيږي ، هوايي ، ځمکنی اوبحري . په دې سربيره درى نورمستقل ځواکونه هم شته چې ديادو پوځي قوتونه سره مرسته کوي اوياپې دتقويي دنده لري ، چې عبارت دي له خاص توغندويي ځواک ، هوايي مدافع قوت او د روسيې دفضا ځانګړی طاقت .

دفاع وزارت د روسيې فدارسون دمسلحو اجرايوي قواوو پيژندل شوى بنسټ دی ، دشوروي اتحاد له مهال تراوسه دمشتر کوقواوو مشرد روسيې دپوځي طاقت اوقواوو داداري دسوق اوتنظيم اصلي اومقتدرواکمن بلل کيږي .

د روسيې دغه مقام دومره لوړ اومهم دی چې دامريکايي پوځي ماهراوڅيړونکي ( ويليام اودام ) په خبره چې په کال ۱۹۹۸ کې کړي ، ويلي وو چې د روسيې دمشتر کو قواوو مشر له دفاع وزارت څخه پرته متصور کولاى شي ، خو دفاع وزارت دمشتر کو قواوو له مشر څخه پرته



نشي متصور کولای ، اوس هم ددغه مقام خپل حیثیت برقرار بلکې اختیارات یې زیات شوي خوکم شوي ندي .

دورستیو څیړنوله مخې دروسیي نظامي قوت په نړی کې له امریکاورسته په دوهم کتارکې راځي ، چې دروسیي دنظامي برخواو توان مشخصات په لاندې ډول ذکر کولای شو .

دوګړو شمیرېې ۱۳۸ میلونه او ۷۴۰ زره تنه دی

روسیه ، ۲۲۹۵۰ ټانګونه ، ۲۴۹۰۰ نقلیه پوځي وسایط ، ۱۲۷۶۵ داوړده واټن توپونه لري ، دلوژستیکي موادو دانتقال لپاره ۱۲ زره نقلیه وسایط په واک کې لري ، دغه ډول روسیه ۲۷۴۹ داني الوتکي او ۵۸۸ چورلکي لري ، په همدې ډول ۲۳۳ داني بحري بیړی ، ۷ بحري بندرونه یوه دالوتکو چورلکو او پوځي وسایطو دانتقال ستره بیړی ، ۴۸ داني ابدوزونه لري .

ویل کیږي چې دروسیي دغه پوځي اودفاعي ځواک اوپرمختیا ۷۰ فیصده دپخواني شوروي اتحادد تسلیحاتي اوصنعتي دوري څخه راپاتي او ۳۰ فیصده یې دپوتین په دوري کې سرته رسیدلي .

همدارازروسیه په دې سربیره چې په داخل کې له خپلو وسلو اوپوځي تولیداتو څخه پوره ګټه اخلي ، نړی ته په لویه پیمانه وسلي اوجنګي وسایل هم صادروي اوپلوري یې .

په کال ۲۰۱۳ کې روسیي له بهر څخه دوسلودپلورلوله درکه ۱۳/۲ ملیارده ډالرترلاسه کړي وو.

روسیي دورستیودوکلونوپه اوږدو کې نیږدې ۶۰ هیوادونوته نظامي وسلي اوپوځي مهم تجهیزات ورکړي اوپرېمانه ګټه یې ترلاسه کړي .

یاده دې وي چې په ۲۰۱۳ کې دروسیي دفاعي بودیجه نیږدي ۹۰ میلیاده ډالره وه .

# څلور غوره کړنې

رسول الله صلى الله علیه وسلم وویل : په تاسو کې نن چا روژه نیولې وه؟ ابوبکر رضی الله عنه وویل : ما ، هغه وویل : په تاسو کې نن چا د جنازې لمونځ کړی ده؟ ابوبکر رضی الله عنه وویل : ما ، هغه وویل : په تاسو کې نن چا مسکین ته ډوډۍ ور کړې ده؟ ابوبکر رضی الله عنه وویل : ما ، هغه وویل : په تاسو کې نن چا د ناروغ پوښتنه کړې ده؟ ابوبکر رضی الله عنه وویل : ما ، نو رسول الله صلى الله علیه وسلم وویل : دا څلور کارونه چې په یوه ورځ کې څوک وکړي هغه به خامخا جنت ته داخلیږي.

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم :مَنْ أَصْبَحَ مِنْكُمْ الْيَوْمَ صَائِمًا ؟ قَالَ أَبُو بَكْرٍ رضي الله عنه :أَنَا. قَالَ:فَمَنْ تَبِعَ مِنْكُمْ الْيَوْمَ جَنَازَةً؟ قَالَ أَبُو بَكْرٍ رضي الله عنه :أَنَا. قَالَ: فَمَنْ أَطْعَمَ مِنْكُمْ الْيَوْمَ مِسْكِينًا ؟ قَالَ أَبُو بَكْرٍ رضي الله عنه :أَنَا. قَالَ:فَمَنْ عَادَ مِنْكُمْ الْيَوْمَ مَرِيضًا ؟ قَالَ أَبُو بَكْرٍ رضي الله عنه :أَنَا. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم :مَا اجْتَمَعْنَ فِي امْرِئٍ إِلَّا دَخَلَ الْجَنَّةَ .أخرجه مسلم

# نه هذیان است که دلیل است

د_دیمه طارق طهبوب

گاهی پیش می‌آید که انسان احساس می‌کند به آخر خط رسیده است و در بدترین مراحل ضعف و ناتوانی قرار دارد و تمام راه‌ها به رویش بسته است. در آسمان به رویش بسته می‌بیند و زمین را بر خود تنگ می‌یابد و میان خود و دیگران دیوارهای بلندی می‌بیند؛ همه با او مخالفند و روی خوشی به او نشان نمی‌دهند. این مرحله‌ای است که پیامبران الهی هم که با نیروی وحی و کمک الهی تقویت شده‌اند آن را گذرانده‌اند چه رسد به بشر عادی. خداوند در کتاب خود از این مرحله با عنوان استیئاس (ناامیدی) یاد می‌کند که اگر ایمان به وعده‌ی الهی نباشد قوی‌ترین انسان‌ها نیز در باتلاق ناامیدی غوطه‌ور می‌شوند و امید و آرزوی خود را به کلی از دست می‌دهند. زیرا پیروزی ظاهری در میدان جنگ به تأخیر افتاده است اما تنها راه نجات از این فروپاشی کامل تداوم آرزو و کار و تلاش تا آخرین قطره‌ی خون است. پس از این ضربه‌ی هولناک است که یاری خدا از راه می‌رسد و همانند آب گوارا که راهش را به درون تشنه‌کام باز می‌کند دل و جان مسلمانان را نوازش می‌دهد.

کسانی که مشمول یاری خدا می‌شوند در نگاه‌شان به مسایل و برآورد نتایج با هم متفاوتند. هر ضربه‌ای شکست نیست؛ مجرد انعطاف‌پذیری در زندگی جوامع و رضایت کامل مردم از کرنش و خواری و عادت به ظلم و ستم تا بالا بردن صدا و تفکر و مخالفت یکی از اشکال یاری و قدرت است؛ حال اگر فرد به صورت مستقیم در برابر ظلم بایستد و تمام خطرات جانی آن که جوانان را پیش از پیران می‌بلعد به جان بخرد چگونه خواهد بود؟

وضعیتی که در نتیجه‌ی رخدادهای اخیر در حیات امت ایجاد شده است بدترین شکل نکبت و مصیبت و خواری و ذلت برای مسلمانان است. خارج شدن امت به ویژه نسل جوان از وضعیت ترس و هراس و رها کردن دل‌بستگی‌های دنیایی برای دست‌یابی به ارزش‌ها والا و اصول گران‌قدر از بزرگ‌ترین پیروزی‌ها بوده است و این دستاوردی است که ماشین سرکوب و خفقان نمی‌تواند آن را از پای درآورد؛ نیرویش را از جای دیگری می‌گیرد که پدر دوست دارد به پسرش بپیوندد و دوست به دوست و خواهر به خواهر و پیروان به رهبران‌شان. مشکل دوران ما فقدان الگو و نماد و پیوند شکننده‌ی نسل‌های جوان با تاریخ و سیره است؛ رخدادهای اخیر آمده است تا رهبرانی بسازد که اصالت گذشته و واقعیت حاضر را با هم جمع می‌کنند و ایده‌ی خود را در عملکردشان پیاده می‌کنند. این واقعیتی بود که در محاکمه‌ی مرشد اخوان شاهد بودیم؛ ایشان با آرامش کامل حکم را دریافت کرد و به مسؤولان امر گفت: اینک زمان عمل به آن شعار رسیده است که سال‌ها بر زبان می‌راندیم: "مرگ در راه خدا بالاترین آرزوی ماست". این محصول سال‌ها تربیت ما است؛ امروز زمان برداشت محصولی است که سال‌ها برای آن زحمت کشیده بودیم.

این یک رؤیا و هذیان نیست؛ بلکه واقعیت زیبایی است که هر کس که خواهان پیوستن به سلک جاودانگان است به پیشوازش می‌رود. این همان مقام پیشوایی مستضعفانی است که خداوند به آنان وعده‌ی قدرت داده است:

"و نريد أن نمن على الذين استضعفوا في الأرض و نجعلهم أئمة و نجعلهم الوارثين" [قصص: 5]

ما می‌خواستیم که به ضعیفان و ناتوانان تفضّل نمائیم و ایشان را پیشوایان و وارثان (حکومت و قدرت) سازیم. پس سخنان او و موضع او در زمان سقوط تلخ رهبران و نخبگان شاهدی برای او و پیشوایی حق خواهد بود.

هر زمان که تغییری در فرهنگ‌ها و ملت‌ها روی داده است، تعداد کمی با توشه‌ی اندکی با آن همراهی کرده‌اند اما این تغییر در درون و فهم و عملکرد بوده است و وجود گروه فداکار و پیشرو در خط مقدم با حضور گرم عامه‌ی مردم جایگزین سایرین می‌شود. قدرت دادن و تمکین به ستم‌دیدگان یکی از سنت‌های الهی است اما به عمل و ایمان فزاینده‌ی افراد بستگی دارد نه سکون و رضا به مظلومیت. نباید بدون توبه از خواری و تنبلی به امید آسمان نشست؛ اصحاب بدر هر چه در اختیار داشتند بخشیدند تا به پیروزی دست یافتند.

گشودن قیچی به تنهایی کافی نیست امت باید با دو دست کار کند و محصول درو کند تا این که خدا پیروزی را نصیبش کند. دشمنان از پیروزی ارزش‌ها و پرورش الگوها می‌ترسند به همین خاطر می‌خواهند آنان را خدشه‌دار کنند و به هر وسیله‌ای ابهت‌شان را در هم شکنند تا به زیان امت سقوط کنند و ملت‌ها کارنامه‌ی درخشانی در عزت و کرامت نداشته باشند. تا امثال دکتر بلتاجی پیدا نشوند که با لبخند کودتاچیان را به چالش بکشد و بگوید که اینجا دیگر نمی‌توانند عزیمتش را در هم شکنند مرگ و زندگی برای او یکسان است.

بر اساس احادیث نبوی خداوند این الگوها را به نیکی می‌سازد و روش کار را به آنان می‌آموزد؛ بسیاری از جوانان را که محصول همین افراد هستند دیده‌ایم که فداکاری آن‌ها به اذن الهی چگونه بر گوش‌ها و قلب‌ها تأثیر گذاشته است پس مژده دهید و بیاموزید.

## ګټورې ویناوې

. سیګرټ څکول:

سیګرټ ستاسو پوستکی وچوي او طبیعي ښکلا مو له منځه وړي. دا چې د بدن د وینې په جریان هم بده اغېزه پریباسي، نو ځکه ستاسو طبیعي ښکلا له منځه وړي.

.بې کیفیته کریمونه کارول هم ستاسو طبیعي ښکلا ته زیان اړوي.

.په پوستکي کې خالونه وهل: دا چې په افغانستان کې په پوستکي کې د خالونو د وهلو مرحلې ته پام وشي، نو معلومه به شي، چې څومره په سخته دغه خالونه وهل کېږي. پوستکی د خال وهلو په وخت ډېر زجر ویني، همدلته ده چې طبیعي ښکلا یې له منځه ځي او ستاسو د بدرنګه کېدو باعث کېږي.

.تر ناوخته ویښ پاتې کېدل:

هغه کسان چې تر ناوخته ویښ پاتې کېږي، نو هم سټریس یا فشار ددې باعث کرځي چې د وجود دفاعي سیستم یې کمزوری کړي. کله چې د وجود دفاعي نظام مختلط شي، نو پوستکي ته د وینې د رسېدو سیستم خرابېږي او همدلته ده چې پوستکی طبیعي ښکلا له لاسه ورکوي او ستاسو د بدرنګۍ باعث کېږي.

. په غیر منظم ډول ډوډۍ خوړل:

هغه کسان چې د ډېر مصروفیت ادعا کوي او په سم او ارام ډول د ډوډۍ خوړلو ته وخت نه ورکوي، نو هم کېدای شي د وینې خواږه یې زیات شي او یا د انسولینو د ترشح باعث وګرځي چې د دغه حالت دوام ستاسو د وزن د کمېدو لامل ګرځي.

.سترګې مه موښئ:

په غلطه طریقه د پوستکي د ګرولو ترڅنګ د سترګو ګرول هم کولای شي ستاسو د پوستکي ښکلا ته زیان واړوي. دا کار د پوستکي د تورېدو، پړسېدو او زخمي کېدو لامل ګرځي.

# د دیموکراسي ډول او بې ځایه ګډا

ع ا خالد

په دې باندې هر عاقل انسان پوهیږي چې افغانستان دا ۱۳ کاله کیږي چې د غربې ټلوالې له خوا اشغال دی او دلته څوک دیوه رئیس د تقرري صلاحیت هم نه لري او د دې هیواد سیاسي، اقتصادي او نوري چارې د غربې ښکیلاک ګروپه لاس کې دي هیڅوک هم د کوم شي صلاحیت نه لري داچې د دیموکراسي ډول د انتخاباتو په نامه وهل کیږي دا هغه ډول دی چې غربه یې وروسته د کورخاوند واوري چې دیوال یې سوري وي او په کورکې یې هیڅ هم نه وي پاتې خود افسوس ځای دا دی چې غل سره د کور خاوند هم ملګري وي.

داچې دیموکراسي زمونږ د دین او فرهنګ سره هم په ټکرکې ده د دې په څنګ کې نوري پټې او ښکاره ناخوالې هم ورسره ملګري دي چې څه یې اوس ښکاره دي او څه به یې وروسته د وخت په تیریدو سره معلومیږي بیا به دا غربې ډول ته نڅاکوونکي هم پښیمانه وي.

دا د حقیقت څخه لیري نه ده چې او سني ټاکنې د غلام رئیس جمهور په ټاکلو کې هیڅ کوم رول نه لري دا پلانونه ټول ۱۳ کاله مخکې جوړشوي دي خو غربیان غواړي چې په دې نمایشي ټاکنو یو هیواد خپله د هغه هیواد د وګړو په واسطه خپل اشغال ته دوام ورکړي او د خپل غلام رژیم د کړه وړو ملامتیا هم د ملت په غاړه واچوي.

دا ښکاره خبره ده چې د دې ډول سندر غاړې او په هغوی دهرې دوري ستاره افغان له وخته ټاکل کیږي مګرد دیموکراتانو نڅا او ګډا هغه څه دي چې یوا ځې د دوی سره ملګرتیا او د خپل ځان سپکاوي دی که چیرې د دې ملت یو وګړي هم د انتخاباتو ډول ته ګډا نه شي بیا به هم یو ټاکل کیږي ځکه دا د دې ملت کار نه خود ملت ناخبره خلک یوا ځې د اشغال د دوام لپاره کارول کیږي .

د دیموکراسي په انتخاباتي پروسه کې دا سې پلانونه شتون لري چې ملت د خاوري سره خاوري کوي ټول مادي او معنوي ارزښتونه یې له منځه وړي او تر ټولو خطرناکه پایلې یې د تعصبا تورامنځ ته کول دي تراوسه پوري زمونږ په هیواد کې ژبې او قومي تعصبات دومره نه وو لکه څومره چې د دیموکراسي په لسیزه کې را منځ ته شول حتي دا رګ غلامان هم د قومي ،مذهبي او ژبنیزو توپیرونو په بنسټ ټاکل کیږي او ټول قومونه یې سره وویشل او خلک یې تعصب ته تشویق کړل.

په دې باندې هر څوک ښه پوهیږي چې بدون د دوی د اجازي څخه څوک ځان نه شي کاندیدولاي داچې څوک مخ ته راځي د یوي خاصي برنامي او پلان له سره سم مخ ته کیږي او غواړي چې د خلکو ترمنځ تعصبات رامنځ ته کړي اوس د غرب لخوا د سیسه جوړه ده چې د ژبې او قوم په اساس کورپه

کوراوکلي په کلی دښمني رامنځ ته کړي اوترڅوچې دنیاآباده وي داتعصبات له منځه ولاړنه شي.

ددي بدبختیوڅخه دخلاصون لاره داده چې مونږبایـد حقایق وپیژنواودخپل ځان لپاره یوبل معیارچې هغه اسلام دي وټاکوددي قـومي اوژبنـي تعصباتوڅخه تیرشـوهرهغه ځوک چې مسلمان وي خپل ورور وګڼو اوهرهغه څوک چې داسلام څخه لیری که څه هم زمونږ ورور وي دهغه څخه نفرت وکړو ټول په ګډه سره دخپل خلاصون لپاره کاروکړو اوکه چیری همداسي ویده وواوهرڅاخپل ډول ته ګډولونوپایله به ددی ملت دنابودي سبب شي.

لله الحمد بیاهم زمونږډیرهیوادوال په دي پوهیږی چې داشغال په صورت کې ټاکني اوحکومت هیڅ کومه معني نه لري که هرڅوک وي نوددوي متابعت به کوي اوددوي په لاره به ځي بدون دهغي څخه غلام دیوي شیبي لپاره هم دغلامي په څوکی نه شي کښیناستلای.

ددوي اودروسانوترمنځ یوائی دومره توپیردي چې هغوي به یوغلام وواژه اوپرځای به یې بل کښیناوه خودوي بیادانتخاباتوپه جعلي پروسي سره دیوه په برځای بل دروي خویوائی داملت ته فریب ورکول دي.

هغه دشمال نورلنډه غران چې دغلام حکومت په مقابل کی په ښکاره مخالف دریځ نیولی دي اوپه پټه توګه سره یودي اودادریم ځل دي چې دناکامي سره مخامخ کیږی خوبیاهم مخ ته کیږی ترڅوپه هره دوره کې ځان کاندید کړي داهم یوپلان دي ترڅودرې ژبي هیوادوال تعصب ته وهڅوي اواصلی خبره داده چې دواړه دیوي ویالـه څخه اوبه کیږي. په پایله کې زه تولوهیوادوالوته که دهرقوم دی اوپه هره ژبه خبري کوی دپردیوداهدافو ښکارنه شي یوبل ته دوروري لاسونه ورکړي اواسلامي نظام دتحکیم لپاره خپل مسئولیت ترسره کړي ترڅوراتلونکي نسل ددي بدبختیوڅخه خلاص شي.

# دروژي په اړه غوره یادونې

۱۴ . هرکله دي چې کومه ګناه وکړه اوالله تعالی دربانـدي پـرده واچوله ، نوپوه شه چې دتوبي لپاره الله فرصت پـه لاس کې درکړ، نو ګناهونه پرېږده اوله زړه څخه دتوبي په لټه کې شه .

۱۵ . دبـدو خلکولـه ناسـتي اومجلـس نـه ځـان وسـاته اودصالحوخلکونیږدیکت اوصحبت انتخاب کړه .

۱۶ . همیشه جومات ته په تلوکې پـیش قـدم اوسـه ، اودالله پـه کورکې دخضوع ، عاجزی اوعبادت مظاهره کوه .

۱۷ . زیاراوباسه چې ترخپل لاس لاندي افرادوته دیني مسایل اوغوره نصایح چې مستندوي غوږوته ورسوي .

۱۸ . خپل روژه ماتي ډیرمه رنګین کوه ، ځکه چې خدای مکړه خبره اسراف تـه ولاړه نشي اود کورغړي لـه تـلاوت اوعبادت څخه محروم نکړي .

۱۸ . دروژي په شپوکې بازارونوته له تګ څخه ترخپلي وسي ځان ساته ځکه چې دروژي قیمتي شپي درنـه پـه لهـوه لعب اوبې ځایه مصروفیتونوتیري نشي .

۱۹. پوه شـه چې دغـه میاشت هغـه ارزښتمن میلمـه دي چې خامخادرنه بیرته په سفرځي ، نوښه مهمان نواز اوسه .،

۲۰ . په اخیروشپو کې دقیام حریص شه ، ځکه دغه شپی زیاتي قیمتي اودقدربیش قیمته شپه هم له ځان سره لري .

۲۱ . داخترورځ چې دالله تعالی څخه دمننې اوسپاس ورځ ده ،ځـان دعبـادت اومسنونه طریقـوپـه پیـروي کې مشـغول ساتـه ، اونادارواوبې کسو خلکو مددګار اوپالونکی جوړشه اودخپل ځان اوورو بچیانوسرسایه خامخامسکینانوته وسپاره .

۲۲ـ لـه شـرعي عذرڅخـه پرتـه روژه ونـه خـوري ، ځکه چې جبران یې سخت اوکه بیایې هرڅومره قضایاني ونیسي ، تلافي اوعوض یې نشي کیدای .

۲۳ . او دنفس دتذکیې لپاره باید کوښښ وکړي ترڅوداعتکاف سنت ژوندي وګرځوي

# زیباترین های عالم

زیباترین شروع: بسم الله
زیباترین دین: اسلام
زیباترین خانه: کعبه
زیباترین استاد: پیامبر(ﷺ)
زیباترین عمو: حضرت همزه (رضی الله عنه)
زیباترین غنچه: ابراهیم بن محمد(صلی الله علیه وسلم)
زیباترین سرانجام: شهادت
زیباترین لباس: احرام
زیباترین ندا: فطرت
زیباترین دوست: کتاب
زیباترین روز: جمعه
زیباترین بیابان: عرفات
زیباترین میعاد: معاد
زیباترین کلام: لااله الاالله
زیباترین آواز: اذان
زیباترین شهید: امام حسین(رضی الله عنه)
زیباترین نبی: حضرت ابراهیم علیه سلام
زیباترین پرچم دار: حضرت علي (رضی الله عنه)
زیباترین پیرمرد: حضرت ابوبکر صدیق(رضی الله عنه)
زیباترین آواره: حضرت بلال
زیباترین شب: قدر
زیباترین خاک: خاک مدینه النبي
زیباترین رحمت: باران
زیباترین کلمه: محبت
زیباترین لحظه: پیروزی

زیباترین سوره: حمد
زیباترین سلسله: انبیاء
زیباترین بانگ: تکبیر
زیباترین پارسا: حضرت عمر(رضی الله عنه)
زیباترین زندانی: امام ابو حنیفه
زیبا ترین فرمانده: خالد بن ولید
زیباترین مفسر: ابن عباس رضی الله عنهما
زیباترین صابر: حضرت ایوب
زیباترین مهاجر: هاجر
زیباترین عمل: عبادت
زیباترین چشمه: زمزم
زیباترین نیکی: نیکی به پدر و مادر.
زیباترین عهد: وفا
زیباترین ناله: نیایش
زیباترین جنگ: جنگ با نفس
زیباترین انسان: پیامبر (صلی الله علیه وسلم)
زیباترین ستون: دین
زیباترین مادر: حضرت عایشه(رض)
زیباترین ثروتمند: حضرت عثمان(رضی الله عنه)
زیباترین سخن گو: حضرت زینب
زیباترین قربانی: حضرت اسماعیل(علیه السلام)
زیباترین کوشش: فی سبیل الله
زیباترین سنگ: حجرالاسود
زیباترین آغوش: آغوش مادر
زیباترین سرمایه: زمان
زیباترین زمین: زمین بقیع
زیباترین ابزار: قلم
زیبا ترین کتاب: قرآن
زیبا ترین منزل: بهشت فردوس
زیباترین شعار: لااله الا الله محمد الرسول الله

# ورستي انتخابات

## که د بدبختي يوه بله پيلامه !

د.عامر

څه موده وړاندې د کابل لاسپوڅي او مزدور حکومت د انتخاباتو په نوم د يوې بلې نوې بدبختۍ اعلان وکړ چې په سمدستي توګه يو شمير هغه اجيري او بې نوره څيري ميدان ته را ووتي او هر يو د افغان ولس راتلونکي خيرخواه او زعيم ځان معرفي کړ

خو نه هيڅکله نه، افغان غيور او باشهامته ولس دوی ، ددوی اخلاق ، ددوی شخصيتونه ، دهغوی دومخي اعمال ، او دومخي دا برنامې پيژندلې ،دوی ډيري چغي ووهلې او په رنګ رنګ لباسونو او شکلونو زمونږ ګران ولس ته راوړاندې شول خو زمونږ قاطع غيرتي او مجاهد ولس نه په دوی سلام واچاوو نه يې د دوی ناولوبرنامو ته غوږ کيښود ،نو يو شمير يې پوه شول چې دا هغه ولس دی چې مونږ بمونه پرې ورولي مونږ په تورو شپو د دوی کورونه تلاشي کړي، مونږ د دوی تنکي ماشومان او ړنک بنګ ځوانان شهيدان کړي نو دوی رايه نه بلکې د زهرو ګوټ به راکوي نو پرشا لاړل او نور وته تير شول په ده جمله کې د افغان ولس يو قاتل رحيم وردګ هم شامل وو داچې د ټاکنو ورځ راغله او افغان

ولس هر يو ته خپل تصوير په آينه کې وښود او د نتيجو د اعلان سره سم لکه د بزکشۍ اسونه ډير په تيزۍ سره د ميدان څخه ووتل او نوم نشان يې ورک شو ،خو د بزکشۍ دوه نور اسونه د دوی په شرميدلي ميدان کې پاته شول او دوهم پړاو ټاکنو اعلان شوي تر څو د څو مياشتو لپاره بيا د افغان ولس دوکه کړي ، خپلې رايې په نسبي ډول زياتي کړي ، جهانيان وغولوي، د خلکو کارونه په ټپه ودروي، نو اعلان يې وکړ چې په دې پړاو کې به ددوکسانو ترمنځ سيالي او رقابت کيږی، ولس دې رای اچونی ته بيا اماده شی.

داخل ميدان ته د پنجشير يو پخوانی ګيدړ ، زوړ داړه مار او لندغر ډاکټر عبدالله او هم د افغان ولس د بدي ورځي څخه تښتيدونکې د اروپا او امريکا په ماڼيو کې چيغي وهونکي يو ناروغ او د کاره لويدلی ډاکټر اشرف غنی احمدزی راووتل ،غواړم چې دغه دوه کسان درنو لوستونکو ته په مختصر ډول دروپيژنم ډاکټر عبدالله: چې د پنجشير اوسيدونکې ده د کمونستانو په لومړيو وختونو کې د خپلې مور سره يوځای په کابل کې اوسيدو او دسترګو په يو طبی کورس يې لوستلی او ناکام تري فارغ شوی او کله چې احمدشاه مسعود د روس يرغلګرو سره د سولې معاهد وکړه نو عبدالله پنجشير ته ورسيده او هلته د مسعود محافظ شو په لوفرۍ او لوچکۍ کې د وخت نامتو ځوان وو او اوس هم يو ستر بد اخلاقه انسان ده چې د نړی قيمتي شراب څکي او ډيره قيمتي درشی او نکتايي اچوی چې د نکتايي قيمت يې دری زره نه تر پنځه زره ډالرو پوری ده اسلام او جهاد ته هيڅ عقيده نلری او صرف د خپلو ګټو لپاره يې استعمالوی

**داسې ښکاري چې اوس امریکا هم دلاندې عواملو له امله له افغانستانه خپل پوځیان وباسي ،خو خپله جګړه دلته په پوځي او نا پوځي دواړو شکلونو کې دوامداره پریښودل غواړي چې د امریکا ملګري به پرمخ بیایي او قومانده او تمویل به غرب پر غاړه اخلي ،او دا کار به ځکه کوي چې امریکا پدې سیمه کې داوږدې مودې اهداف لري هغه چې دمستقیم اشغال په شکل کې حاصل نه شول.**

ډاکټر اشرف غنی احمدزی: د لوګر ولایت او سید نکې ده د فامیل په لحاظ دیوی غټې کورنې سره تعلق لری خو په جهاد کې یې ونډه نه ده اخستی او په غرب کې یې وخت تیر کړی یو سیکولر سړی ده په اقتصاد کې دوکتورا لري او د امریکا په یو پوهنتون کې استازی کړی ده په دغه وخت کې د اشغال میدان نه استفاده کوي او غواړي چې د افغان ولس زعیم شی او د افغانانو یو ستر قاتل رشید دوستم یې خپل مرستیال ټاکلی نو پدې توګه کوم انتخابات چې ترسره شول د افغان ولس د بنیادي ستونزو حل او د اسلام د مقدس دین نفاذ هیڅ طرف هم په خپلې برنامې کې نلري یوه هم په خپلو شعارونو کې دا ونه ویل چې زما راتلونکې نظام به د اسلام په اساساتو او دیني شعایرو ولاړ وي ،پریکړې به د اسلام د قانون له مخې کیږي او مسلمانان به د نړی یو غښتلی او پیاوړي قوم په توګه سر را پورته کوي

زمونږ د ولس یو شمیر خلک یې په خپلو چالاکو او مداري ژبو دوکه کړل او د خپل راتلونکې فساد ، غلا ، خیانت ، اسلام دښمنی او مسلمان شرمونې ضمانت پانه ( رایه ) یې تري واخسته.

ای د افغانستان مجاهد او غیور ولسه ؟ دا انتخابات نه بلکې زمونږ د هیواد د تباهی ، بدبختی غلامی خرڅونی او هم د باغررو ه افغانانو دله منځه وړلو یو پلان شوی د سیسه ده او د بد بختی یوه نوی پیلامه ده ، غرب غواړی چې د ځیرو په بدلون د خپلو شومو طرحو او د سیسو د عملی کولو لپاره نوي ځیري رامنځ ته کړي او دودی په دورغجنه ژبه اعلان کړي چې مونږ دا کال تر اخره د افغنستان څخه وځو او تاسی ته په میراث کې یو ښه حکومت پریږدو خو داسی هیڅکله نده ؟؟؟ دوی ځیري تعویض کوي او اصلي هدف یې د امنیتی تړون لاسلیکول دي او په نوي شکل او نوي ډیزاین سره زمونږ دولس تباهي ته متی رانغاړي.

زمونږ غیور ، زړور او مجاهد ولس باید دغلیم په وړاندې نوي ایثار او قرباني ته ځانونه چمتو کړي خپل عزم او ثبات پیاوړی کړي انشاءالله هغه ورځ لری نه ده چې ټول هیواد کې د اسلام حقیقی بیرغ ورپیږی ، پریکړی د محمدی شریعت په رڼا کې تر سره شی امیر او غریب دواړه به په یوه ټغر کینی ،هر افغان ، په سوله او هوساینه کې ژوند وکړي او زمونږ د هیواد ټول تور مخی او زیږ مخی مزدوران په پوره ذلت او ټیټو سترګو د هیواد څخه په نامعلوم لور ورک شي

. نو افغان ولس باید د زیات فکر او سوچ څخه کار واخلی او هیڅکله په داسی نا مشروع ټاکنو کې ونډه وا نخلی او په لوی لاس د افغانستان د تباهی او افغان ولس د غلامی چانس چاته ورنکړي، څو میاشتی وروسته د پارلمان په نوم یو ځل بیا د ټاکنو یوه بله د سیسه او لوبه پیل کیږی چې ورته ټاکونکي کاندیدان به لدي موجوده کاندیدانو څخه زیات مضر او غلامان وي پام وکړی د هوش څخه کار واخلی او په پوره میړانه او شجاعت سره پدی ټاکنو کې هم ونډه وانخلی غرب او دهغوی مزدوران صرف زمونږ او تاسو څخه د خپلو پلانونو د عملی کولو لپاره کار اخلی نو راځی چې په یو اواز یو اتفاق او یو احساس د الله(ج) د نظام د نفاذ لپاره قربانی ورکړو ، د جهاد ، شهادت اود جنت دا مقدسه لار خپل مسیر او هدف وګرځوو او خپل رب ته سپین مخ ورشو .

# انتخابات تمام شد

## اما انتصابات ادامه دارد!!

(منقاد)

کشمکش های نتائج انتخابات رژیم کابل درین روزها در سراسر کشور ومیان احزاب سیاسی بشدت ادامه دارد ملت بجان هم افتاده اند در شرایطیکه بهترین فرزندان کشور پشت میله های زندان هستند، ومردمان متدین وجهادپرور در حبس غیر قانونی نیروهای نظامی خارجی وغلامان داخلی دستگاه قضا گردیده اند منابع ملی در بستر و زیر بستر در حال چپاول وغارت است. انتخابات بازی در افغانستان البته با عرض پوزش دقیقاچون گاوبازیست!! باحرکت در آوردن یک بیرق آن گاوخشم وغضب ملت را گهي به راست و گهي به چپ مي كشاند. واقعااین فروخته شده گان چه می خواهند وازملت چه چشمداشتی دارند زیرامی دانیم، که اینها کار گزاران غربیان واجنبیان هستند. نه کار گزاران مردم نه نمایند گان مردم. از همین رواست، هر قدری که این نمایش رامطالعه نمایم، نتیجۀ عملی آن همان است، که تاامروز شاهدش بوده ایم.

ملت شهید پرور مابجای شعارهای که «ماازرای خود دفاع میکنیم» باید «انتخابات انتصاباتی» ویا «انتصابات انتخاباتی» رژیم دزدان وجنایتکاران را فعالانه تحریم کنند «تحریم فعالانه» واین بدین معنی است، که در افشاگری همه جانبه و گسترده، در پرده برداشتن از سر تاپای این رژیم فاسد وجنایتکار فعالانه شعار بدهند.

کسانی که خود را مرد سیاست می دانند ومی پندارند که نقش بالایی در حکومت دارند وسرنوشت ملت رابدست میگیرند. آیاازعملکردهای سابقه شان خجالت نمی کشند؟ درجنب خود نیز همچوافراد فاسد وجنایتکاران وخائینین ملی را گرفته عوام وملت راتحت نام مقدس جهاد فریب میدهند عوام که در طول اعصار فرصت آن را نیافته اند که از درد شکم به بیشتر فکر کنند، بستری خوبی برای رشد این ستمکاران وغاصبان بوده اندعوام طوری در ورطه ناآگاهی نگهداری شده اند که همه امور آنان برمبنی گفتار این ستمگران بوده است نه اینکه خود در مورد استقلالیت فکری وشناختی باوری ومنطقی داشته باشند. این مشکل فرصت خوبی رابدست اشغالگران ومتجاوزین و این مزدوران فاسد داخلی داده است تاازمردم علیه مردم وازمردم ودین علیه دین استفادۀ سوکرده به اریکه قدرت برسند.

شماشاهدهستید که درپهلوی عبدالله عبدالله کسانی قرار دارد که به جز از چپاول گری ورهگیری قصر سازی ثروت پرستی وقتل ملت وچند تن گم راه تاریک نگر خود پرست متعصب مانند امرالله صالح که روزانه پنج بار اندیشه راه وفکرش تغیر میکند، دیگر صفت نیکی ندارند. اگر عملکردهای سابقه ایشان راورق بزنیم خوب درمی یابیم که بجزازنفاق همکاری باغربی ها، سپردن لجام کشور بدست اجنبیان، پریشانی وآواره گی، خانه سوزی کشتار، جنگ وجفاظلم، چور وغارتگری در حق مردم کشور ارمغان دیگری ندارند... آرزو و سیاست همیشگی ایشان همین است.

این هاکسانی اند که گذشته ایشان مملواز رسوائی ویکدستی بااشغالگران در ظلم وستم علیه فرزندان حق پرست جامعه وفروختن خون شهداء جامعه ودیگر اعمال زشت وناشایسته دربرابر جامعه بوده که یادآوری ازآن برایشان به بهاء سرافگندگی تمام میشود. این افراد میخواهند ازیکسواین گذشته نابکار خویش را کتمان نمایند از سوی دیگر بااغفال اذهان ملت وبرچشمان آنهاخاک زده سرنوشت فردای ملت رانیز در قیمومت خود ویاخانوادۀ خود داشته باشند. اما تاریخ باز گوی تجارب نیک وبد جامعه است، هرچند اگر افراد مغرض وجاه طلب به نفع مردم داران سیاه پیشه آن را جعل کنند، بازهم فرزندان راستین جامعه کم نیستند که دربرملاساختن چهره های نار وای این اشخاص فروخته شده باصداقت وراستی قلم بردارند و کردار سیاه ایشان رانسل به نسل نقل کنند.

شخص دیگری که میخواهد سرنوشت این ملت شهید پرور رابدست بگیرد داکتر اشرف غنی است که خانمش لبنانی الاصل تابعیت آلمانی دارد خودخانمش طی یک گفتگوی اختصاصی باشبکه اطلاع رسانی افغانستان به مسیحی بودن خود افتخار کرده میگوید «زنان افغانستان رانیز به گرویدن به دین مسحیت تشویق می کند.

رولا عبدالغنی در پاسخ به این سوال که آیامسیحی بودن شمامشکلی برای ایفای نقش همسر ریاست جمهوری کشوری باترکیب بیش از99 در صد مسلمان ایجاد نخواهد کرد گفت: مسیحی بودن من جرم نیست اگر چه من از طرف مادری به نوعی یهودی محسوب می شوم.

وی اضافه کرد، به اعتقاد من بانوان افغانستان تحت فشار به دین اسلام گرویده اند چون راه دومی نداشته اند. اگر آیین مسیحیت به خوبی برای آنان تشریح شود، شک ندارم بیش از نیمی از آنان به این دین خواهند گروید.

خانم اشرف غنی احمدزی ادامه داد: من در طول ده سال گذشته از فعالیت برخی گروه های تبشیری مسیحیت در مناطق مرکزی، شمال و کابل به صورت غیر مستقیم حمایت هایی داشته ام. در صورت حضور در کاخ ریاست جمهوری به طور حتمی این کار را گسترش خواهم داد تا مردم افغانستان بدانند مسیحیت آن چیزی نیست که ملاها در مغز آنان وارد کرده اند. وی زنان افغانستان را به آزادی تشویق کرده گفت: آزادی زنان به قدری شیرینی خواهد داشت که به خودی خود، موضوع مسیحی بودن من حل خواهد شد.

هموطنان عزیز! به بینید او خودش شعار میدهد که بعد از کامیابی شوهرش در جامعه چه خدمت میکند شما خود شنیدید که تمام زنان ملت شهید پرور ما را به مسیحیت دعوت میدهد و میکوشد که همه آینده ملت را مسیحی بسازد. مردم افغانستان باید آگاه باشند که غربی ها و اسرایلی ها از گذشته های دور بالای اشرف غنی سرمایه گذاری نموده اند تا روزی او را بر ملت ما حاکم سازند، تا به واسطهٔ وی آرمان ها، عزایم و دسایس شوم خود را پیاده سازند. همین است که خانم نصرانیی یهودی اشرف غنی احمدزی به خود این حق را میدهد که بگوید: من زنان افغانستان را عیسوی می سازم. چنانچه سایت اسرایلی «بی اچ ورلد» در مقالهٔ تحت عنوان «ترس وامید» از اشرف غنی به توصیف پرداخته. «واورا گزینهٔ مناسبی برای احراز کرسی ریاست جمهوری افغانستان دانسته وادامه می دهد که اشرف غنی تنها کسی است که عقب افتاده گی افغان ها را می تواند در عرصهٔ جهانی ترمیم کند.

هموطنان عزیز! مقصود از ذکر اعمال این اشخاص وطن فروش اهانت به تاریخ وافتخارات کشور نیست، واین هویدا است که افغانستان زادگاه آزادمردان که پرچم آزادی، مساوات، تمدن ودانش در دست داشته، بوده است. اما این هم غیر قابل انکار است که در برابر این همه بزرگ مردان، رهبران وقمندانان مفسدو شریر داخلی وصحنه ساز برای خارجی ها واجنبیان کم نبوده است. آیا این همه شقاوت ونفاق وفساد وانداختن مردم کشور را بجان همدیگر بمناسبت سمتی، گروهی، قبیلوی، تعصبی، نژادی، قومی واستفاده از نام مقدس جهاد، برای رسیدن به اریکه قدرت، از دامن چه کسانی چکیده است؟ این ها هرگز در فکر آبروی ملت نبوده اند. اصل ملت است این همه مستبدین با گذشته نابود گر خویش به چشم ملت خاک میزنند تا به اهداف شوم خود رسیده کشور را به هر طرف که میل داشتند سوق بدهند.

این دو تن مزدوران که خود را برای ریاست جمهوری لایق تصور میکنند، خود بچنگال کفر والحاد ومتجاوزین افتاده اند و همه شؤن اجتماعی شان را با غرب وملت های کفری وابسته احساس میکنند که از خویش هیچ استقلالیت ندارند. این همه جنجال ها وانتخابات خاک زدن بچشم ملت است کشور ومردمیکه از خود استقلالیت نداشته باشند ولجام کشور شان بدست بیگانگان باشد پس انتخابات چه معنی دارد؟ بجز اینکه فقر ودرماندگی های فرهنگی واقتصادی امت اسلامی را بگدایان مبدل سازند و کاسه خالی اجتماعی را باید از کندوی مفکوره های غربی پر سازند. در عین حال همه افغانها نگران اند و همه می پرسند، همه در دریائی وحشت وحیرت غرق شده اند که آخر بر سر این صاحبان جاه وجلال طلب چه آمده است که بخاطر منافع سیاسی شان، نه بخاطر سربلندی اسلام چون کرمان گور بجان هم افتاده اند، گروه گروه در برابر خدا کمر بغاوت بسته اند آخر سرنوشت مبهم وتاریک ودور وفرورفته در غل وزنجیر این ملت چه خواهد شد.

باید ضمیر ملت غیور افغانستان اجازه ندهد که فرزندان چنین جوی گندیده ومتعفن باشند، باید عصیان کنند بر آن کلاه برداران که قرآن را بحیث دام تزویر استعمال میکنند وبه تلاوت چند آیات آن خود را مسلمان معرفی میکنند همچو خانم اشرف غنی وباجلوه اسلام ومجاهد نمائی وشیخ الحدیثی همچو عبدالرب رسول سیاف بازیچه دست غربی ها اند. باید عصیان نمایند بر همه آن مجاهدنماهائی که بر سر خون شهداء شان با دشمنان اسلام معامله گری میکنند. باید عصیان کنند بر آن همه غلامان که در قبال چند دالر آبروی ملت را می فروشند. هموطنان عزیز! باید هر فرد ملت مسلمان وغیور افغانستان متوجه نقشه های پلید و توطیئه های ویرانگر و تزویر ناجوانمردانه دشمنان خود یعنی آمریکا، اسرائیل و روبای مکار (انگلس) باشند.

از رب متعال تمنادارم که دست نماینده گان فروخته شده گان خود پسند خود را از سرنوشت کشور مظلوم وشهید پرور ما کوتاه سازد. وکمک نماید که ملت ما از دست اشغالگران خارجی واین مزدوران داخلی آزاد گردیده خود صاحب سرنوشت و سعادت خود گردد.

از بس ستاره کشتید روی زمان سیاه است
هم این زمان، هم آن زمان سیاه است
دست قلم شکستید، پای سخن بستید
ای روشنی ستیزان افکار تان سیاه است
میخانه ها ببستید، بتخانه ها گشودید
با خون وضو نمودید، کردار تان سیاه است

# د دوهم پړاو انتخاباتو پايلې

قاري محمود غزنوي

د کرزي د دوهمې دورې د پای ته رسیدو سره سم په کابل کې موجود ګڼو تنظیمونو هڅه پیل کړه، چې د جمهوري ریاست لپاره خپل نوماند وړاندې کړي، او د ارګ په ماڼۍ د قبضې خوبونه لیدل یې پیل کړل، چوکۍ یوه وه، خو غوښتونکي یې په درځنونو، انتخابات وشو او خو پنځوس+یو هیڅوک هم ترلاسه نکړو، یوازې ډاکټر عبدالله او اشرف غني له ډیرو منډو ترړلو او تقلب نه وروسته تر نورو زیاتې رایې لاسته راوړې او د دوهم پړاو لپاره خودبخود منتخب شوو، نو ځکه انتخابات دوهم پړاو ته وغزیدو، ډاکټر عبدالله چې په لومړي پړاو کې تر ټولو وړاندې وو، هغه فکر کول، چې زما او د ارګ په منځ کې هیڅوک حائل نشي کیدای، ځان يې منتخب رئیس جمهور ګڼل، ځکه خو یې په زغرده وویل، چې که چیرته زه منتخب نشوم، نو په کابل کې به په بیالو بیالو وینې وبهیږي، د نوموړي غرور او تکبر له اسمان سره خبرې کولې، د هغه معاون محقق په یوه جلسه کې خپل رقیب اشرف غني ته په خپله هزاره ګۍ کې داسې مخاطب شو او ورته یې وویل چې پُچُقِتْ میکنم. همداسې دوی اشرف غني د اسلام له دائرې څخه وایستل او د کافر ټاپه یې پرې ولګوله او اسلام یې یوازې تر ځان پورې منحصر کړل.

دا چې دوی خپله بریا یقیني ګڼله، ځکه ځانونه یې مجاهدین ګڼل، او رایه اخستل یې خپل واجبي حق ګڼل، دوی دعوه کوله چې زموږ ګیرچاپیره ټول مجاهدین دي، او د مخالف لوري ګیر چاپیره ټول غربیان دي، خو افغانانو دوی پیژندلي دي، د دوی جهاد یې لیدلی دی، چې تل یې له یرغلګر ځواک سره یو ځای د افغانانو په خلاف جنګ کړی، بل لوري ته هم اشرف غني او دوستم ورته سم نه ښکاریدل، د دوستم سابقه خو ټولو ته معلومه ده، او اشرف غني هم په افغاني ټولنې کې د یادوني وړ شخصیت نه شمارل کیږي، د هغه ښځه یهودۍ ده، هغه له سر نه تر پښو پوري غرب پلوی او غرب لوریلی ده، نو افغانان په سخت فکر او اضطراب کې ډوب شوو، چې څه وکړي، ولې بیا یې فیصله وکړه، چې ستونزي خو په دواړو کې دي خو اخف د ضررينو انتخابول پکاري دي، یعنې د بدتر پر ځای بد انتخابول پکاري دي، نو اشرف غني ته یې رایه ورکړه، تر څو هغه په اصطلاح د کامیابۍ په درشل کې شو.

افغانان د في الحال لپاره له دواړو څخه ښه تمه نه لري، ولې دوی فکر کوي، چې که چیرته ډاکټر عبد الله يو ځل د واک واګې له لاس کې واخستې بیا به یې له مرګه پرته له لاسه ورنکړي، همداسي افغانان فکر کوي چې که ډاکټر عبد الله برسر قدرت شي، نو کیدای د افغانانو وژنه زیاته شي، همداسي ممکن د هیواد تجزیې ته زمینه سازي وشي، ولې د اشرف غني د قدرت په مهال کیدای شي افغان له قتل څخه خو بچ شي، خو دا امکان څوک نشي رد کولای چې سخت به وزورول شي او د غرب جرړي به نوري هم وځغلول شي.

البته د اشرف غني د واک ته رسیدو په صورت کې يوه ستره خطره د دوستم په بڼه لیدل کیږي، هغه داسي چې که چېرته غربیانو یا خپله دوستم د يو پلان له مخې کوشش کړی وي، چې اشرف غني را مخته کړي، په لوی لاس افغانان بیا په ځانګړي توګه پښتانه د دښته وهڅوي، چې هغه ته رایه ورکړي، چې کله هغه د قدرت واګې په لاس کېواخلي، د افغانستان رئیس جمهور شي، نو لږ یا ډېر وخت وروسته اشرف غني د یاسرعرفات په شان له ناوړه برخلیک سره مخ شي، یعني په خفیه توګه د قلبي حملې، مرض یا بلي بانې له امله له منځه يوړل شي او مړ يې کړي، د قانون له مخې به واک دوستم ته ورسي، هغه به د اشرف غني په ځای د هیواد جمهور رئیس شي، لکه څرنګه چې په ګاونډي هیواد پاکستان کې د بې نظیري د وژنې له امله آصف زرداري واک ته ورسیدو، نو په دې صورت کې دې د افغانانو خدای مل شي، ممکن بیا د دوستم راتلونکی له ډاکټر عبد الله څخه هم بدتره شي، د پخوا په شان په افغانانو خپل هیواد سور تنور کړي

. مطلب د ډاکټر عبد الله بدتر دی، اشرف غني بد دی، خو د همدې بد په ضمن کې بدتر دوستم پروت دی.

دا ټولې د غربي جمهوري نظام دوکې او فریبونه دي، باور وکړئ، ټول انتخابات په تقلب، رشوت او بد معاشئ ولاړ وي، چې څوک د غرب خوښ وي، د هغه په ګټه ټول مطبوعات او رسنۍ را وڅرخوي، له هغه څخه بې ځایه اتل او قهرمان جوړ کړي، خو چې څوک يې بیا خوښ نه وي، هغه له انسانیت او ټولني څخه وباسي. همداسي که د ټولنې پنځه او یا فیصده خلک رایه ورنکړي، خو پنځه ویشت فیصده رایه ورکړي، نو دوی ترې اکثریت جوړ کړي، او هغه پر ټول ملت واکمن کړي.

**دمجاهدینو میډیا غښتلي ده !**

دکندهار داجیري اداري دوالي ویندوی، جاوید فیصل وایي چې دطالبانو میډیا زمونږ له رسنیواوتبلیغاتي دستګاه څخه غښتلي اومخ په وړاندې ده، هغه وایي، طالبان هره پیښه له مونږ څخه مخکي خلکوته رسوي اواذهان دځان په ګټه ځرخوي.

دوالي ! ویندوي اعتراف کوي چې طالبان دانټرنیټ، فیسبوک اوټویټر له لاري په سریع اوعاجل ډول خپل خبرونه ، اعلامیې، پیغامونه اوغبر ګونونه خپروي، په داسې حال کې چې دولتي سرچیني او هڅې دومره پڅې او کمزوري دي، چې حتی موظف کسان هم په ډیر مشکل پیداکیږي ترڅوخبریالانوته معلومات ورکړي ، نو په دغه صورت کې خبریالان اړ دي چې دطالبانوخبرونوته پام واړوي اوډیرڅه له هغوتر لاسه کړي.

دنیویارک ټایمز خبریال، تیمور شاه وایي چې طالبان په مطبوعاتي میدان کې له سختې ځیرکتیااوهوښیاری څخه استفاده کوي، هغه وایي طالبان دایمیلونو، تلیفوني میسجونو، برښنایي ډله ییز و رسنیواومهالنیومجلوپه مټ خپل پیغامونه اوپرمختګونه په مختصرو جملو اوټکوکي په داخل اوبهر کې خلکوته رسوي.

# پکتیکا ولایت د ګوملې په ولسوالۍ کې د د مفسدي ادارې د سناتورانو دخپلمنځي اختلاف له کبله د یو شمیر مکاتبو د بندیدو په اړه

دافغانستان د اسلامي امارت د پکتیکا ولایت د معارف
درياست لخوا وضاحت

باسم رب الشهداء والمجاهدين

د پکتیکا ولایت چه د مساحت په لحاظ ډیر لوي او ډیرې لرې پرتې سیمې لري او اولس او بچیان یي د علم تږ ي دی ولې متاسفانه چې په هر وخت کې تر ډیره حده لـه علمي رڼا څخه د زورواکو لخوا بې برخې کیږي چې په دي وروستیو کې یوځل بیا د پکتیکا ولایت د ګومل ولسوالۍ لـه مظلومـو ولسونو او بچیانو سره د فاسدې ادارې دسناتورانو لخوا د خپل منځي اختلافاتواو د شخصي منافعو د حصول پـه غرض او د مفسدی ادارې د پوهنې د وزیر ، د پکتیکا د والي او د معارف د رئیس د بې کفایتي لـه وجې د همدې معصومو بچیانو راتلونکې د علم له رڼا څخه بې برخې شوي : هغه دا چې له دوو میاشتو راهیسې د یادې ولسوالي د معارف د مدیریت په سر د همدې ولسوالۍ ددوو سناتورانو قـدیر خان او محمد حسن ترمنځ بز کشي روانه ده هریوغواړي چې یاد مدیریت ته د خپلې کورنۍ کسان راولیږي ترڅو لـه همدې لارې له معلمینو سره په معاشاتو کې خپله ناحقه فیصدی تثبیت کړي او د معارف وزیر هم پـه هـره میاشت کې نوی نوی احکام ورکوی او د پکتیکا والي او د معارف رئیس هم د خپل منصب د ساتلو پـه غرض د همدې مظلومو بچیانو د علمي حقوقو ضائع کیدو ته د تماشې په سترګو ګوري ..... بدتره لا دا چې فعلا هغه یو شمیر مکاتب چې د مفسدی ادارې تر کنټرول لاندي دي چې تعداد یي په یاده ولسوالي کې تـر ۱۷ پـورې رسیږي د ماشومانو پـه مخ د سناتورانو پـه زور بنـد شـول ............ ولې الحمدلله دافغانستان اسلامي امارت د معارف عالي کمیسیون خاصا د اسلامي امارت د پکتیکا ولایت د معارف ریاست ددي موضوع اسلامي او افغاني ارزښت ته په کتلو سره لاندې اجرات ترسره کړل .

1. ساحې ته دی معارف د مدیرانو او مجاهدینو په لیږلو د خپلو هڅو پـه برکت او د اولس د قـانع کولو او د همکار کولو په مټ د یادې ولسوالي ۱۱ بابه مکاتب بیرتـه د ماشومانو پـه مخ خلاص کړل او معلمین یي په حاضری او تدریس کولو مجبور کړل .

2. هم یي د مفسدې ادارې لـه لوري دمعارف مدیر د مجاهدینو د کنټرول لاندي ساحې کې نظر بند کـړو تـر څـو لـه دې بز کشي څخه معـارف شـفاف او خلاص کړي ولې بیا هـم داسلامي امـارت د پکتیکا دولایت د معارف د مسئولینو ، مجاهدینو او عام ولس د هڅو بـاوجود لـه (۵) نـه تـر (۷) بابو مکاتب چې د مفسدې ادارې او د سناتورانو د زور واکي تـر مستقیم اثر لاندي دي لا اوس هم د معصومو بچیان پـه مخ بند پاتې شوي دي ،

لهذا ـ د اسلامي امارت د پکتیکا ولایت د معارف مسـؤلین پـه ټولـو ازادو علمـي فرهنګـي او باحساسـه اسلامي او افغاني ټولونو غږ کوي چې د یادې فاجعې د مخ نیوي پـه اړه د خپـل مسؤلیت احساس وکړي او جدي قدم پورته کړي او د اسلامي امارت د معارف د مسؤلینو د هڅو سره خپلې هڅې ملګرې کړي او د پکتیکا ولایت د ګوملی د ولسوالۍ د بچیانو د راتلونکي په روښانه کولو کې پـه ذي دخلو لورو د حق ږغ وکړي ترڅـو د معـارف شـفافیت ، تقدس او بې پـري والـی وساتل شي

د اسلامي امارت د پکتیکا ولایت د معارف
درياست لخوا

# آمریکاییها



در سایه حمایت نیروهای خارجی، مقام های دولتی روزها در فعالیت های اداری خود مشغولند و شب هنگام به قاچاق مواد مخدر می پردازند به همین دلیل هم می باشد که انها با صداقت خواهان مبارزه با مواد مخدر نیستند و فقط شعار می دهند.

امروز پنجم ماه سرطان برابر بود با روز جهانی مبارزه با مواد مخدر. پدیده ای که سالانه میلیون ها انسان را به کام مرگ می فرستد اما جیب میلیون ها نفر دیگر را نیز پر پول می کند.

به همین مناسبت مجالسی در کشور برگزار شد که باز هم مقامات کابل وعده دادند تا قاچاقچیان مواد مخدر در هر مقام و موقعیتی که باشند، به پنجه قانون سپرده شوند. ادعایی که بیشتر به یک شعار شبیه است تا یک وعده عملی.

براساس گفته های اربابان قدرت هم اکنون سه میلیون افغانها اعم از زن و مرد و کودک برای تولید و قاچاق مواد مخدر در افغانستان سهیم می باشند، یعنی تقریبا یک دهم از جمعیت کشور. که از این میزان یک میلیون نفر نیز معتاد به مواد مخدر هستند.

حال باید از مسوولان ذی ربط پرسید که چگونه می خواهید با این تعداد نفر دخیل در امور مواد مخدر، مبارزه نمایید و یا بهتر است بگوییم طی این سالها برای کاهش این آمار چه اقدامی انجام داده اید؟

سوال دیگر را باید از مقامات غربی پرسید که چگونه در حضور بیش از صدهزار سرباز خارجی کشت مواد مخدر در افغانستان طی ده سال ۴۰ برابر شده است!؟ سال ۲۰۰۱ و پیش از حضور نظامیان خارجی میزان تولید سالیانه مواد مخدر ۲۰۰ تن در سال بود، که در سال ۲۰۰۷ میلادی به هشت هزار و ۲۰۰ تن یعنی دوبرابر سال ۲۰۰۵ رسید و امسال نیز سازمان ملل اعلام کرد انبارهای کنونی تریاک در افغانستان تا ده سال دیگر جوابگوی نیاز مواد مخدر جهان می باشد.

جواب این سوال مشخص است. در سایه حمایت نیروهای خارجی، برخی مقام های دولتی روزها در فعالیت های اداری خود مشغولند و شب هنگام به قاچاق مواد مخدر می پردازند به همین دلیل هم می باشد که مقام های کابل با صداقت خواهان مبارزه با مواد مخدره نیستند و فقط شعار می دهند.

براساس گزارشات رسیده از منابع موثق یکی از علتهای افزایش تولید مواد مخدر طی سال های اخیر، ترانزیت هوایی انبارهای تریاک و دیگر مواد مخدر به خارج از افغانستان توسط هواپیماهای ناتو می باشد که این روزها شدت زیادی یافته است.

دلیل این ادعا هم اقدام تامل برانگیز نیروهای خارجی به ویژه آمریکا است که از نابودی مزارع خشخاش جلوگیری می کنند!!! چندی پیش مقام های آمریکایی در توجیه این رفتار خود گفتند که

